مُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَّأْتِيْ مِنْ بَعْدِي اسْمُهٗ أَحْمَدُ

ترجمه

حضرت عیسیٰ وائی چه ای خلقو تاسو ته زیری ورکوم

د یو رسول د راتلو چه له مانه پس راتلونکی دی او د هغه نوم

احمد دی

منتخب انجمن احمدیه ضلع پشاور

# کتاب نزول المسیح

په دی کتاب کښ

د حضرت سیدنا محمد رسول الله او د سلسلهٔ محمدیه حالات

او د حضرت غلام احمد مسیح موعود علیه السلام ذکر د

ژوند او د وفات درج دی

در اسلامیه سٹیم پریس لاهور باهتمام

منشی مظفر الدین صاحب منیجر طبع شد

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّی عَلٰی سَیِّدِنَا مُحَمَّدٍ رَّسُوْلِہِ الْکَرِیْمِ

حمد ثنا ده هغه رب له چه احد دَی
لا شریک دی بی همتا دی او صمد دَی

نه دی جسم نه جوهر دے نه دی روح دے
دی یو نور دَ کل عالم بی شکل و قد دَی

نه دَده څه ابتدا شته نه انجام شته
له ازل نه دی موجود او تر ابد دَی

نه ئې پلار شته نه ئې ښځې نه اقربا شته
یکتنها دَی لم یلد دی لم یولد دَی

هغه چه مخلوقات دی کل مخلوق دے
دی خالق دی ځکه ده لره ورکړے حمد دی

دی کولی شي هر کار چه دے ئې غواړی
دی قادر دَی با اختیار دے کوئې جلد دَی

مشکلات دَده مخلوق دے دی خالق دے
ځوک چه ده ته څه مشکل وائې نا بلد دے

په یو کن ئې پیدا کل موجودات کړه
محتاج کله دَ یعوق یغوث او ود دے

پیدا وښت ئې نه تنها دی اچه ونو
دَ مخلوق ئې معلوم کړی چا عدد دَی

ملائکه خیر و شر ده دا پیدا کړه
هر ملک په جدا کار په جدا مد دَی

چه آدم شه خلیفه عقل ئې ورکړ
چه تمیز کاندِ دا نیک دی هغه بد دے



شریعت ئې دی په دا سبب ولے کړی
چه دَ حق او دَ باطل په منځ کښ سد دے

دا قرآن ځکه نازل په لوئ کمال شه
چه په شان دَ محمد دا لوئ سند دَی

ده ورکړی محمد لره لوئ شان دی
ظاهر کړی دَده لوئ شان محمد دی

محمد خیر الوریٰ فخر الرسل دَی
ځوک چه دی کښ شک کنړی هغه مرتد دے

هغه کس چه محمد خوښ کړ قبول شه
هغه ځوک چه له دِه ورد شه هغه رد دے

دَ قرآن حفاظت خدائ کړی په هر شانے
موعود کړی ئې خدمت له مجدد دے

هغه وقت چه خوف پیدا شي په اسلام کښ
مامور کړی مجدد ده په هر صد دے

په دَ دیارلس سوه سن کښ دَ ولس دا غله
اوس چه سر دَ صدے ئې غلام احمد دے

دی مسیح دی هم مهدی آخر زمان دے
لا مهدی الا عیسیٰ ئې موئید دَی

دی موعود په دَ صدے وه آخر اغی
پخوانو ئې وقت بښود لی دَ آمد دَی

هر چه وائې له قرآن حدیث نه وائی
قول دَ ده ډیر معتبر او مستند دے

نوټ دی یو نمر دی چه را وخوت له مشرق
ځکه دَ ده په شرق غرب بوم چغد دے

ده موندلی په دښمن ده هر ځائ فتح
دا په دا چه خدائے ولاړ ئې په مدد دے

دَ ذلت کو لئې سوری اَن په ښکر کړ
هغه کس چه ورد دیدلی په ضد دے

عزت بیا موندهٔ هغه چه ئې خادم شه
ذلت بیا موندهٔ هغه چه په حسد دے

ډیر محزون احمدی نن خوشحاله کړی
چه شفیع ئې محمد امام احمد دی

اې خوږو ورونړو تاسو ته ښکاره دی چه دا کتاب د وفات المسیح
کښ د حضرت اسحاق علیه السلام د اولاد یعنی د بني اسرائیلو
احوال او د حضرت موسیٰ علیه السلام او د هغه د امت
حالات او د حضرت عیسیٰ علیه السلام ژوند او د هغه
وفات په ښه شان سره معلوم شه - اوس په دې کتاب کښ
چه نزول المسیح نامه لري - زه د حضرت اسماعیل علیه
السلام د اولاد احوال چه عرب دي - او د حضرت محمد
رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغه حالات - او د
حضرت غلام احمد مسیح موعود علیه السلام ژوند او
د هغه وفات بیانوم - او دا کتاب هم په درې حصو تقسیم
کوم - **اول** تمهید - **دویم** اول باب - **دریم** دویم باب
په **تمهید** کښ د حضرت اسماعیل علیه السلام ذکر دی
په **اول باب** کښ د حضرت محمد رسول الله صلی الله
علیه وسلم سوانح دي او د سلسلې محمدیه ذکر دی -
په **دویم باب** کښ د حضرت غلام احمد علیه السلام د
ژوند او د وفات ذکر دی -

## تمهید



# احوال د حضرت اسماعیل علیه السلام

## او د بني اسمٰعیلو

د حضرت ابراهیم علیه السلام مشر ځوی اسماعیل علیه
السلام وه - چه د حضرت بي بي هاجرې ځوی وه - حضرت
اسمٰعیل د مور په غیږ کښ وه - چه حضرت ابراهیم علیه
السلام سره د موزه د شام نه روان کړه - او د عرب په
ملک کښ ئې د حجاز په هغه علاقه کښ پرېښود - چه اوس
پرې مکه معظمه آباده ده - چه حضرت اسماعیل علیه
السلام لوئ شه - نو حضرت ابراهیم علیه السلام عرب
ته ورله راغی - او هغه ځائ کښ چه کوم ځائ کښ حضرت
اسماعیل علیه السلام ډیره وه - یوه کوټه ئې د حضرت
اسماعیل علیه السلام په مدد سره بنا کړه - او هغه کوټه
په بیت الله سره موسومه شوه - د حضرت اسماعیل علیه
السلام اولاد ته بني اسماعیل وایه شي - ټول عرب
پس له دغو ورځو د بیت الله حج شروع کړ - هغه وخت چه
اسلام راغی - نو حج فرض شه - حضرت محمد رسول الله صلعم

د بني اسماعیلو نه دی - کل عرب د بني اسماعیل اولاد دی

# باب اول

## احوال د سیدنا حضرت محمد رسول الله صلعم

نسب نامه

محمد - عبد الله - عبد المطلب - هاشم - عبد مناف - کلاب
مره - کعب - لوی - غالب - فهر - مالک -
النضر - کنانه - خذیمه - مدرکه - الیاس - مضر
نزار - معد ثانی - عدنان دوم - اد - اودوم - الیسع
الهمیسع دوم - سلامان دوم - ثابت - حمل
معد اول - عدنان اول - ادو اول - الهمیسع اول
سلامان اول - عوض ثانی - برد - ابی العوام
ناشل - حرا - یلدارم - بدلان - کالح - فاجم
ناحور - ماحی - عسقی - عنف - عبید - الرعاء -
حمران - ین - هری - بجری - بلخی - ارعوا
عنقا - حسان - عیسی - افتاد - ایام - معصر
ارزاخ - سمائی - مر - عوض اول - عوام - قیدار - اسمعیل



# د حضرت پیدایش

د حضرت نوم محمد وه - د پلار نوم ئې عبد الله وه - د مور نوم ئې بی بی آمنه وه - د حضرت عیسی علیه السلام د وفات نه پنځه سوه اویا کالو پس د عرب په ملک کښ د حجاز په علاقه کښ او د مکه معظمه په ښهر کښ پیدا شوی وه - د حضرت خاندان د کعبې منجاوران وو - او د مکې معظمې سرداري د هغو د تبروه - ځکه چه کعبه حضرت ابراهیم او حضرت اسماعیل علیهما السلام آباده کړې وه - او د حضرت خاندان د هغو د نسله وه - د حضرت د خاندان عزت په ټول عرب او په شام کښ داسې وه - لکه د کاکا صاحب د اولاد چه په دې وطن کښ دی - او د دغه خاندان گذران په سوداګرۍ او په شکرانو وه

## زمانه د جهالت په عربو

د عرب خلق په دغه زمانه کښ د هیڅ یو دحکومت د لاندې نه وو - لکه دا فرید وآزاد وو - ښه ځوان مرد خلق وو - د میلمه عزت کول د دوی صفت وه - د دوی

ډیر بهادر وو - فصیح ژبانه وو - مګر لاری وهل - بد کاری - خلق لوټل - زناکاری - دَ شراب څکل - بیګناه عالم وژل - او په لږه لږه خبره مرګ ته تیاریدل دَ هغو عام عادت وه - او دَ چا کره چه به لور پیدا شوه نو په هغه به دَ آسمان نه شین کا نړی راپریوت - هغه به له ډیره غمه هغه لور ژوندۍ ښخه کړه - دَ ښځو لَ هیڅ عزت نه کاوه - لکه دَ چارپایو ګڼلی شوی - دَ هغو هیڅ حق نه ګڼلی کیده - غرض دا چه دَ هغه زمانی عرب دَ دی زمانی پښتانه وو - هغه دَ شریعت نه هم داسی بیزاره وو - لکه چه اوس ځینی پوښتانه دِي -

دَ عربو خلقو دَ خپلو بزرګانو بُتان جوړ کړی وو - او دَ هر امر دَ پاره یو بُت مقرر وه - دَ تبی دَ پاره بیل وه - دَ مقدمو دَ پاره بیل وه - دَ باد و - دَ سرخوږ - دَ توری دالی دَ غزی دَ پاره بیل بُت وه - دَ باد باران دَ اولاد دَ پاره بیل وه - غرض دا چه دَ هری قبیلی دَ هر مطلب دَ پاره یوجدا بُت لاره - او دَ هری ورځی دَ پاره یو جدا بت وه دا بتان دری سوه شپیته (۳۶۰) وو - او دَ کال هم دو مره ورځی دي



دا ټول ئی راجمع کړی وو - او په کعبه کښ ئی ایښی وو - او دَ لری لری نه به خلق دَ دوي زیارت له راتله - او دَ هغو بتانو منځ ورانو له ئی شکرانی ورکړی - په دغو بتانو کښ لوئ بتان - لات - منات - عزیٰ - هبل - ود - یعوق - او یغوث وو - دَ عربو حال په دی معامله کښ بالکل دَ افغانانو سره یودی - ځینی افغانانو هم دَ هر امر دَ پاره په هره علاقه کښ یو بت یا زیارت مقرر کړی دَی - او خدائ تعالیٰ ئی له ډیرو سوالونو نه خلاص کړی دی - ځکه چه دَ هر مطلب دَ پاره یو جدا زیارت لری - نو خدای تعالیٰ ته دَ سوال کولو ضرورت نه راځي - لکه چه عربو به دَ بتانو قسم خوړ دا افغانان دَ خپلو پیرانو - یعنی دَ کاکا صاحب دَ لوئ ځوان دَ پیر بابا دَ دیوانه بابا - دَ مدی بابا - قسمونه خوري - او حال دا دی چه په حدیث شریف کښ راغلي دي - چه

لا تحلفو باٰبآءکم و باولادکم واندادکم و بالله - الا وانتم صادقون - یعنی دا چه هیچری به خپل مور او پلار یا په خپل اولاد - یا په خپلو بزرګانو چه دَ خدای په ځای مو دَ سوالونو او دَ مرادونو دَ پاره نیولی دي - قسم مه خورئ

اومه په خدایٔ تعالی قسم خورئ - مګر هله دَ خدایٔ تعالی
قسم خورئ چه که تاسو په خپله معامله کښ رښتني يئ افسوس
دَی - ځمونږ عالم بې ځایه ډوب شه - او خبر نه دِي - خدای
خبر چه دوئ به خدای له څه ځواب ورکوي چه دَ ناحقو
قسمونه په پروځنبو کوي - غرض دا چه په عربو دا سې حال
وه - لکه چه اوس په پښتنو را غلی دَی -

## دَ حضرت دَ نبوت نه وړنبی حوال +

دَ حضرت پلار عبد الله په مدینه منوره کښ فوت شه - دَ
حضرت پالنه بیا خپل نیکه عبد المطلب کوله - دَ حضرت
مور دَ حضرت نوم احمد ایښی وه - او دَ حضرت دادواړه
نومونه وو - دَ حضرت دائي بی بی حلیمه مقرره شوه
او هغی به ورله شودٔه ورکول - حضرت چه دَ شپږو
کالو شه - نو دَ هغه مور وفات شوه - او چه دَ اتو کالو
شه نو دَ حضرت نیکه عبد المطلب هم مړ شه - دَ حضرت
پرورش بیا دَ حضرت تره ابو طالب چه دَ حضرت علی رض
پلار وه کاوه - حضرت دَ هلک والی نه ډیر هوښیار - دیندار



رښتني - او امانت دار وه - اکثر به یواځی خوښ وه او
چه فرصت به ئې بیا موند نو دَ مکی په خوا کښ یو غر وه
هلته به لاړ او په یو غار کښ چه غار حرا باله شه
به ناست وه - او خدایٔ به ئې یاد اوه -
حضرت چه دَ دولسو کالو شه - نو یو ځل خپل تره ابو طالب
خان سره دَ شام ملک ته بوته - او په دغه سفر کښ یو
راهب چه دَ هغه نوم بحیره وه حضرت ولید - هغه
راهب ابو طالب ته وه وې - چه دَ دی هلک ډیر عزت کوه
او دَ ده پرورش کوه - دی به یوه ورځ راشي - چه دَ خدایٔ
تعالی رسول به شي - او دَی به هغه رسول وِي - چه دَ ده
دَ راتلو خبر ټولو پیغمبرانو په خپلو زمانو او کتابونو کښ
کړی دَی - ابو طالب چه دا خبره واوریده نو دَ حضرت
ئې ډیره ښه پالنه شروع کړه - حضرت پس له دی نه
خپل عمر په عبادت او په سوداګرئ کښ تیر کړه - او دَ خپلی
امانت دارئ او دَ راست ګفتارئ په سبب به ده ته خلقو
صادق او امین وی - چه دَ حضرت دا صفتونه په خلقو
کښ مشهور شو نو په مکه کښ دَ یو سردار ښځه وه - او

هغه کښې شوی وه - دَ هغې نوم خدیجه وه - او ډیر دولت
لې لاره - دَ هغې دَ خپل خان دَ پاره دَ یو داسې سړی ضرورت
وه چه دَ هغې ټول کار سنبال کړي - او خیانت کوونکې هم
نه وِي - هغې چه دَ حضرت صفت واوریدو نو حضرت
ئې راوباله - او ورته ئې وُوِ چه زه به تا له دَ نورو خلقو نه
دوه حصې زیاته تنخواه دُکوم - خو ځما نوکری قبوله کړه -
حضرت دَ خپل تره ابوطالب په مشوره دا نوکرِي قبوله کړه
او دَ خدیجې دَ سوداگرِي مال ئې دَ یمن ملک ته یوړ - چه
بیرته راغې نو په هغه مال کښې ډیره فائده وشوه - خدیجه
ډیره خوشحاله شوه - او حضرت ته ئې دَ نکاح درخواست وکړ
غرض دا چه حضرت خدیجه په نکاح قبوله کړه - او په دغه
وقت کښې دَ حضرت عمر دَ پنځه ویشتو کالو وه - پنځلس کاله
نور په نکاح کښې دَ حضرت تیر شو - او دَ خدیجې نه دَ حضرت
څلور لونړه او یو ځوئ قاسم نومې پیدا شو - دَ دې هلک په
سبب حضرت ته ابوالقاسم هم وایه شي - دا هلک په ورکوټوالی
کښې مړ شه - دَ خدیجې دَ څلورو لونړو دا نومونه دِي - زینب
ام کلثوم - رُقیه چه حضرت عثمان رض دَ حضرت هډیم یار



کړی وه - او فاطمه رض چه حضرت علی کړی وه -
حضرت چه دَ پنځه دیرشو کالو شه - نو زید ابن حارث - یو
شهزاده وه په یو جنګ کښې نیولی راغی - او دَ بي بي خدیجې
په حصه کښې ورسید - او دَ هغې غلام شه - حضرت
په زید رحم وخوړ - او دَ بي بي خدیجې نه ئې وغوښت
او آزاد ئې کړ - دَ زید پلار ډیر دولت دَ زید دَ آزادئ
دَ پاره راولیږه - چه قاصد راغې او زید ئې آزاد ولید
هغه ته ئې دَ وطن دَ تلو دَ پاره وُوی - زید له تلو نه
انکار وکړ - او دَ حضرت سره ئې استوږنه غوره کړه
څه موده پس حضرت دَ خپلې ترور لور زینب
ورته په نکاح کړه -

## دَ نبوت آغاز

حضرت چه دَ عربو جهالت - او دَ ښځو سره ظلم او
دَ لونړو ژوندې ښخه ول به ئې لیده - نو ډیر به
خفه وه - او دَ عربو بد کارِي - او بت پرستي چه
به ئې لیده نو ډیر به ئې وژړل - او دَ حرا په غار کښې
ئې خدائے تعالی ته ډیر سوالونه دَ هغو خلقو دَ بهبود

دَ پاده کول- په میا شتو به ئې روژه وه- او په دغه تور غار
کښ به ئې خدائ ته زارِی کوله- آخر خدائ تعالی دَ هغه
دعا واوریده- او خپله وحِی پرِ نازله کړه- په دغه وقت
کښ دَ حضرت عمر دَ څلویښتو کالو وه- په حضرت چه
جبرائیل ورښی وحی داوړه- نو هغه داوه- اِقْرَأْ بِاسْمِ
رَبِّکَ الَّذِیْ خَلَقَ ۚ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ۚ اِقْرَاْ وَرَبُّکَ
الْاَکْرَمُ ۙ الَّذِیْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ۙ عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَالَمْ یَعْلَمْ ؕ
حضرت تر څلویښتو کالو نه څه لوستی شو- او نه څه لیکلی
شو- مګر بیا پرِ خدائ هغه فضل وکړ- او هغه علم ئې
ورکړ چه دَ دنیا عالمان ورته حیران پاتی شو- په حضرت
چه داوحِی وشوه نو کور ته راغیَ- او بی بِی خدیجی ته ئې
داحال ووی- هغې په هغه ساعت په حضرت ایمان
راوړ- او بیا په هلکانو کښ حضرت علی ایمان راوړ
او بیا زید ایمان راوړ- او بیا په ښځو خلقو کښ حضرت
ابو بکر ایمان راوړ- او بیا ورو ورو عالمو به اسلام
قبلوه- تر دری کالو خو حضرت به یو یو سړي ته
پټ پټ وعظ کاوه- خو بیا ئې خپل ټول ټبر راجمع کړ



او هغو ته ئې دَ هغو بدئ بیانی کړی- دَ بتانو بدئ ئې
ورته ووی- او دَ یو خدائ دَ عبادت وعظ- او دَ اسلام
دین ئې ورته بیان کړ- مګر هغو خلقو ډیر بد ومنل- او
دَ حضرت مخالف شو- مګر بیا حضرت به په هر ځائ کښ
دَ اسلام بیان کاوه- او هر چاته به ئې کاوه- یو ځل کفار
راجمع شو- او دَ حضرت تره ابو طالب ته ئې ووے
چه دا وراره دِ منع کړه چه ځمونږ دَ بتانو دِ بد نه وائي
که نه وِی نو مونږ به ئې بی عزته کړو- ابو طالب حضرت
ته ووی چه منع شه- او کفار داسی وائي- حضرت
ورله ځواب ورکړ چه عزت دَ خدائ په لاس کښ دی- دَ
خلقو څه عزت او څه بی عزتی ده- زه به هغه کوم چه
څه دَ خدائ تعالی حکم وِي- زه دَ خلقو هیڅ پروا نه لرم-
چه په دی هم حضرت منع نه شه- نو کفارو یو قاصد حضرت
له راولیږه- او هغه حضرت ته ووی- چه ته ځمونږ دَ
بتانو بد مه وایه- او ځمونږ پلار نیکه په مشرکانو
مه ستایه- او که ستا دولت پکار وی نو مونږ به
درکړو- او دومره به درکړو چه په ټول عرب کښ دومره

دولت به نه وی - او که لوئ والی غواړی نو موږ به دِ
خپل سردار مقرر کړو - او بی ستا د رضا هیڅ کار به نه
کوو - او که ته بادشاهی غواړی نو تا به خپل بادشاه
کړو - او که په چا مین ئی نو هغه ښځه به د ر له وغواړو
او که لیونی ئی نو حکیمان به را وغواړو چه ستا علاج
وکړو - او هرڅه چه ولګیده هغه به ولږووُ - چه
حضرت دا پیغام واوریده - نو هغه ته ئی وفرمائیل چه
نه مِ دولت پکار دی - نه ستا سو سردارِی غواړم -
نه مِ بادشاهي پکار ده - نه په چا مین یم - او نه لیونی
یم - مګر دا مِ مطلب دی چه د بتانو نه مه د غوښتل
پریږدي - او د خدائ نه د هرڅه طلب کوئ - او د هغه
په حکمونو چلیږئ - غرض دا چه حضرت هغه قاصد ته
ډیر نصیحت وکړ - هغه قاصد بالکل خاموش شه - او
لاړو او هغه احوال ئی خپلو مشرکو ته ووی - چه قریش
په دا رنګ هم کامیاب نه شو - حضرت د پاره ئی د تکلیف
د رسولو مشوری شروع کړی - او حضرت ته به ئی په لاره
کښی اغزي او مال کندئي ښوره ولی - او چه حضرت



به چرته وعظ کاوه - او قرآن شریف به ئی اوږدوه - نو
هغو به هلته شور جوړ کړ - چه څوک وانه وري - او هیچا
به په خپله مزکه وعظ ته نه پریښود - چه حضرت به
روان شه نو هغو به په کڼو او په غنډو ویشته - او
حضرت به زخمی شه - یو ځل یو اشي په لاره تلو نو یو څو
کسو ونیوه او د حضرت مرئ ئی خفه کړه - حضرت
ابو بکر رض هلته پیښ شه حضرت ئی خلاص کړ - نو کافرانو
حضرت ابو بکر رض دومره وواهه - چه هغه هلته بیخوده
شه - په حضرت او په مسلمانانو به بیحده ظلم د
عربو خلقو کاوه - چه څوک به مسلمان شه نو هغه
به کافرانو بربنډ کړ - او په تودو شګه به ئی څملاوه
او په سینه به ئی ورله لویه کټه کیښوده - ډیر
مسلمانان به دغه سی شهیدان شول -
غرض دا چه ډیر خطرناک ظلمونه په حضرت
او په مسلمانانو به کفاد وکول -

## د مسلمانانو حبشو ته هجرت

چه حضرت دا حال ولید - نو ډیر مسلمانان ئے

دَ حبش ملک ته و لیږل - کفار هلته هم ورپسې لاړه
او دَ هغه ملک بادشاه ته ئې و وې - چه دا څموږ مریان
دی څموږ نه راتښتیدلی دي - موږ له بیولوله راکړه -
بادشاه دا مسلمانان راوُبلل - حضرت جعفر دَ
حضرت علیؓ ورور وړاندِ شه او هغه ووې چه -
ای عالیجاه بادشاهه - څموږ حال دادی چه موږ په
جهالت او په ګمراهي کښ پراته وو - دَ بتانو نه به مو
په هر کار کښ مدد غوښته - حلال حرام مونه پیژندل
کاوکی خبری به موله خولی نه ختلی - په موږ کښ سړی
توب نه وه خدائ تعالی په موږ فضل وکړ - محمدؐ ئې په
موږ کښ رسول کړ - دَ هغه پاک نسب - دیند اری - حق
ویل - او نیک عمل موږ ته ښکاره وه - خدائ تعالی
هغه ممتاز کړ - هغه دَ خدائ موږ ته دا پیغام واوروه
چه په یو خدائ ایمان راوړئ - دَ هغه سره هیڅوک
مه شریکوئ دَ هر مطلب سوال له هغه نه کوئ - دَ بتانو
نه هیڅ مه غواړئ - رښتیا وایئ - په امانت کښ خیانت
مه کوئ - دَ هر چا سره نیکی کوئ - دَ خپلو همسایه وُ



عزت کوئ - په ښځو ظلم مه کوئ - دَ یتیمانو مال مه خورئ
پرهیزګاره شئ - دَ خدائ عبادت کوئ - دَ غریبانو مدد کوئ
ای بادشاه موږ په دغه رسول ایمان راوړی
دی - او دا دَ هغه تعلیم دَی - موږ دَ بتانو نه بیزاره یو
او دَ یو خدائ عبادت کوو - او په دی سبب دا کفار موږ
تنګوي - تکلیفونه راکوي - موږ دی وطن ته راغلو
دلته موهم په ارام نه پرېږدي - ستادَ انصاف امید
لرو چه ته به موږ دَ دوئ ظلم ته پری نږدی -
دَ جعفر دا تقریر چه دَ حبش هغه عیسائی بادشاه
واورید - نو هغه هم په حضرت ایمان راوړ - او دَ
کفارو نه ئې هغه مسلمانان بچ کړه - او کفار مخ توری
بیرته راغله - چه کفار دَ مکې له دی حاله خبر و اُشو
په حضرت او په مسلمانانو ئې لا ظلم زیات کړ - په دی
حال کښ حضرت حمزهؓ دَ حضرت تره او حضرت عمر هم
اسلام راوړ - بی بی خدیجهؓ او ابوطالب هم دواړه
مړه شو - حضرت دَ بی بی خدیجیؓ په وفات ډیر غمژن
شه - مګر زر حضرت ابوبکرؓ ورله خپله لور بی بی

عایشه رض د دې غم د غلطولو د پاره په نکاح ورکړه - په دغه
موده کښ د مدینې منورې یو څو کسانو ایمان راوړ - او چه
هغه عالم مدینې ته لاړه - نو نورو خلقو هم ایمان راوړ -
او د مدینې عالمو حضرت ته خواب وکړ چه دا به ډیره
ښه وي - که ته مدینه کښ موږ سره استوږ نه قبوله
کړې -

## د مدینې هجرت

حضرت دا خبره ډیره خوښه کړه - او اصحابو ته ئې ووې
چه هر څوک چه خوښ وي نو هغه د مدینې ته هجرت وکړي
ډیر اصحاب یو یو دوه دوه مدینې ته لاړل - په دغه ورځو
کښ د مکې کفارو د حضرت د قتل اراده وکړه - او دا مشوره
ئې وکړه چه د شپې چه محمد ص اوده شي نو ورکره به ورشو
او قتل به ئې کړو - خدای تعالی حضرت د هغوی له ارادې نه
خبر کړ - حضرت علی رض د حضرت په ځای اوده شه - او حضرت
سره د ابوبکر رض د شپې شپې مدینې ته روان شه - دری ورځې
ئې منزل وکړ - پس له دری ورځو په یو غار کښ چه په یو
غره کښ وه پټ شو - دغه غار د غار ثور په نوم یادیږي



کفار تر دغه غاره حضرت پسې لاړه - مګر حضرت ئې بیا نه موند
او بېرته راغله حضرت رسول او حضرت ابوبکر د هغه
ځایه مدینې ته ورسید - دې سفر ته هجرت وائي - او
هغه چا چه دا سفر کړې وه - هغوی ته مهاجرین وائي -
سنه دغه وقت د حضرت عمر د نبوت دوولسو کالو وه - او د مسلمانانو سن
د دې هجرت نه شروع شوې ده - حضرت چه مدینه کښ
داخل شه - نو د دوی خور شپاړسمه و د جمعې ورځ وه
د حضرت د تماشې د پاره ډیر عالم جمع شوی وه - او هلکان
جنکو - او ښځوئ له کوټو نه ننداری کولې -
حضرت په مدینه کښ یو مسجد بنا کړ - دا هغه جماعت دی
چه په مسجد نبوي باله شي - په مدینه کښ یو څو یهود
او نصارئ هم په حضرت ایمان راوړ - په مدینه کښ
د حضرت علی رض نکاح د بي بي فاطمې رض سره وشه - د دې واده
په داج کښ حضرت بي بي فاطمې رض له یوه پرستن - دوه پرتو
یوه میچن - دوه منګي د خاورو - او یوه کوزه ورکړې وه -
د حضرت د لور د نکاح دا حال وه - او څوک چه په دې ملک کښ
عالم د خدای د رسول د دین نه برخلاف چه د هغو

دَ وَسه کیږِي - په نکاح - په کوژدنه په داج کښ کوی حضرت علیؓ په دریمه ورځ دَ خپلو دوستانو ډوډیٔ هله وکړه چه خپله زغره ئې گانړه کړه - او ځمونږ عالم هرڅه چه کوِي دَ شریعت نه بوخلاف او دَ حده تیر کوِي - دَ غریبانو حصه هیڅ نه کوِي - او هرڅه دَ مخ دَ ملاذی دَ پاره کوِي -

## دَ مدینې انتظام او دَ بدر جنگ

حضرت به اکثر دَ اوربشو ډوډیٔ خوړه - او کله کله به ئې دَ اوبنی شوده څکل - هر کار به ئې پخپله کاوه - دَ حضرت وعظ په خلقو کښ ډیر اثر پیدا کړ - او ډیر عالم مسلمانان شول په مدینه کښ عبدالله ابن اَبیُ دَ حضرت مخالف شه - او هغه په مکه کښ ابوجهل ته خط ولیکه - چه تاسو راشِئ او دَ محمدؐ سره جنگ وکړیَ - زه به ستاسو مدد دوکړم او تاسو به فتحمند شئ - آخر دَ رجب په میاشت کښ او په سنه دویم هجرِي کښ یعنی څه دَ پاسه یو کال پس دَ مکی قریشو په مدینه حمله وکړه - په دغه حمله کښ ابوجهل او ابوسفیان مشران وو - حضرت دَ فتح دَ پاره دعا وکړه - دَ بدر په مقام



سخت جنگ شه - او ابوجهل په دغه جنگ کښ مړ شه - کفار وماتی وکړه - ډیر مال دَ مسلمانانو په لاس راغی - دی جنگ ته دَ بدر جنگ وایه شِي - حضرت ته حضرت عمرؓ خپله لور بی بی حفصهؓ په نکاح کړه - او حضرت خپله لور ام کلثوم حضرت عثمان له په نکاح ورکړه چه دَ بدر په جنگ کښ دَ کفار وماتی وشوه - او لوئی لوئی سرداران دَ هغو مرداشو - او دَ ابوسفیان دَ ښځی

## ( دَ احد جنگ )

چه هنده ئې نوم وه - پلار او ورور په دغه جنگ کښ دَ مسلمانانو دَ لاسه مړه شو - دی ښځی ډیر تاؤ و خون خپل خاوند ابوسفیان ئې ډیر ملامته کړ - او غیرت ئې ورکړ - چه تا دَ یو څو بیکسو مسلمانانو نه ماتی وکړه - او اوس یا ځوانان دِ بائیله - آخر ابوسفیان ئې بیا جنگ ته تیار کړ - او هغه یو لوئی لښکر دَ دری زرو قریشو چه دَ حضرت خپل قوم وه دَ حضرت جنگ ته روان شه - په دوئی کښ اوه سوه سواره وو - باقی پیاده وو - نیم لښکر دَ خالد ابن ولید دَ لاندِ وه - او نیم لښکر دَ عکرمه ابن ابوجهل

دَ لاندِ وه - دَ دی فوځ حال حضرت ته ورسید - حضرت
هم یو زر کسه جنګ دَ پاره راجمع کړه - او په دغه زرو کسو کښ
هم دری سوه دَ مدینې یهودیان وو - دَ مسلمانانو په دغو
یهودیانو پوره اعتبار نه وه - نو حضرت هغه هم رخصت
کړه - او صرف اوه سوه مسلمانان پاتی شو - په دی اوه
سوو ځوانانو کښ دوه کسه سواره وو باقی ټول پیاده وو
دَ مسلمانانو لښکر دَ اُحد غونډیٔ څخه ډیره شو - حضرت
بله ورځ سحر څخه مسلمانان په یوه غونډیٔ مقرر کړه -
چه دویٔ دِ دلته ولاړ وي - او بالکل دِ نه خوځیږي - او باقی
مسلمانان ئې ځان سره واخسته - او په کفارو ئې حمله وکړه
په دی حمله کښ دَ کفارو سخت جنګ وشه او کفارو ماتې
وکړه - او هغه غونډیٔ ته روان شو چه حضرت پرِ
پوځو مسلمانان مقرر کړی وو - هغو مسلمانانو چه دَ
کفارو ماتې ولیده - دَ حضرت حکم ئې هیر شه - او لوټ ته
ورودانګِ شو - کفار غونډیٔ ته را وُختل - او دَ هغو ځای ئې
ونیوه - او س کفار په غونډیٔ شو - او مسلمانان دَ لاندِ شو
کفارو به مسلمانانو کانړی ورول - او غشي ویشتل شروع کړه



ډیر مسلمانان زخمیان او شهیدان شول - دَ حضرت دوه
غاښه په کانړي ولګیده او مات شو او ډیر زخمی شه - او په
یوه کنده کښ پریوت - کفارو آواز وکړ چه محمد ژوندی دی
حضرت خپل ملګری منع کړل - چه ځواب مه ورکوئ - بیائې
آواز وکړ چه ابوبکر رضه ژوندی دَی - حضرت له ځوابه منع
کړه - چه ځواب مه ورکوئ - هغوبیا آواز وکړ چه عمر رضه
ژوندی دَی - هیڅ آواز ورنه کړ - چه هغه کافر له هیڅ
ځواب ونه موند - نو خوشحال شه - او آواز ئې وکړ - چه
شکر دی چه دوئ مړه شو - او له ډیره جوشه ئې نعره
کړه چه - اُعْلُ هُبَلُ - یعنی ای ځمونږ معبود دکاره
هبله (دا دَ هغو دَ یو غټ بُت نوم وه) ستا ډیره لویه
مرتبه ده - حضرت عمر چه دا نعره واوریده - له ډیره
غیرته جوش ور اغی - او ځواب ئې ورکړ چه اَللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ
یعنی دَ لوئي او دَ عزت خاوند الله تعالی دی - هغه کافر
چه دَ حضرت عمر رضه دا آواز واورید - نو پوه شه - چه
نه محمّد مړ دی او نه عمر رضه مړ دی -
په دی جنګ کښ حضرت حمزه دَ حضرت تره شهید شه

هنده دَ ابوسفیان ښځه راغله - او دَ حضرت حمزه له تنه ئې بند بند جدا کړ - او دَ حضرت حمزه زړه ئې راوښکه او چکونه ئې پرِو لګول - او دَ هغه له سره لې دَ هغه غوږونه او پوزه پریکړله - چه خپل زړه سوړ کړ - نو بیرته لاړه - حضرت چه سره دَ اصحابو مړو له راغی نو دَ حضرت حمزه چه دا حال ئې ولیده ډیر غمګین شه - پس له دې جنګه دَ کفارو سره دَ یو کال دپاره صلح وکړې شوه چه مدینې ته حضرت بیرته راغی نو دلته دَ مسلمانانو یوه جنۍ چه پېۍ ئې خرڅول - دَ یهودیانو کوڅې ته تلې وه دَ پیو خرڅولو دَ پاره - یهودیانو هغه جنۍ وچېړله مسلمانان په دې خبره خبر شو - او دَ یهودیانو مرګ ته تیار شو - مګر حضرت یهودیانو له حکم ورکړ چه ټول له مدینې نه ووزۍ یهودیانو مدینه پرېښوده - او خیبر ته لاړه - دَ اخیبر په عربو کښې دَ یهودیانو یوه قلا وه - یهودیان چه له مدینې نه وُویستې شونو هغو هم به مسلمانانو ته دَ جنګ کوابن کاوه - او دَ قریشو سره شامل شو - غرض دا چه دَ یهودیانو سره او دَ قریشو سره ډیر جنګونه وشو



او په ډیرو کښې دَ حضرت فتح وشوه - او په عرب کښې دَ اسلام تخم ښور شه -

## دَ مکې فتح کول

آخرکار چه دَ حضرت دَ هجرت اته کاله وشو - او حضرت په ډیرو جنګونو کښې فتح بیاموندہ - او هم په هره علاقه کښې ډیرو خلقو ایمان راوړ - مسلمانان دولس زره شو (۱۲۰۰۰) نو حضرت دَ مکې دَ فتح کولو اراده وکړه - ځکه چه یو خو دَ کعبې خلاصول له کفارو نه - او هغه بتان چه په کعبه کښې وو دَ هغو وړکول له کعبې نه ډیر ضروری وو - بل په مکه کښې چه دَ پاتې شو و مسلمانانو سره بد سلوکی کیدهٔ - دَ هغو مدد هم ضروري وه - بل مکه دَ کفارو دَ آسرې ځاۍ وه - او په عرب کښې لویه بت خانه دَ مکې وه - او کل عرب به دَ مکې دَ بتخانې دَ پاره دَ حضرت مخالفت کاوه او حضرت ته فساد به له مکې او چتیده - غرض دا چه دَ یوخوب په بنا حضرت لس زره (۱۰۰۰۰) عالم ځان سره کړه او مکې ته لاړه - مګر په هغه کال کفارو دَ مسلمانانو سره صلح وکړه او څه شرطونه دَ صلحې مقرر شو - او مسلمانان صرف

د دې ورځې د کعبې د طواف د پاره په مکه کښې پاتې شو- او پس له درې ورځو نه مسلمانان بېرته راغله-

په دې زمانه کښې ډېر لوئ لوئ کفار مسلمانان شول- او په هغو کښې خالد بن ولید- او عمرابن العاص چه د حضرت ﷺ ډېر مخالف وو داخل وو- کفارو د دې صلحې د شرطونو هیڅ خیال ونه کړ- او مسلمانان به ئې عذابول- او یو څو مسلمانان ئې شهیدان کړه- چه حضرت خبر شه نو بیا سره د لسو زرو مسلمانانو مکې ته روان شه- چه مکې ته ورسیده کفار ووېرېدل- ابو سفیان هم مسلمان شه عکرمه د ابو جهل ځوئ څه قدر جنګ وکړ- مګر ماتې ئې وکړه حضرت سره د لسو زرو مسلمانانو په مکه معظمه کښې داخل شه- او د کعبې طواف ئې وکړ- او بیا په کعبه کښې داخل شه او هغه درې سوه شپېته بتان ئې واړه مات کړه- په دې بتو کښې لوئ بت هبل وه- مشرکانو په هغه ډېر ناز کاوه- چه دې خو به اوس څه کرامت وښائي- او مسلمانانو ته به لوئ نقصان پېښ شي- مګر په ټولو بتانو کښې څه وو هغه هم مات کړې شه او هیڅ نقصان چا ته ونه رسید



چه مکه معظمه فتح شوه- او بتخانه وړانه شوه- او د کفارو آسره بشوده شوه- نو ورو ورو ټول د مکې خلق به راتله او ایمان به ئې راوړه- عکرمه د ابو جهل ځوئ هم ایمان راوړ- او حضرت معاف کړ- د ابو سفیان ښځه هنده او د حضرت حمزه رض قاتل وحشي هم حضرت وبخښل- او هغه هم مسلمانان شو- غرض دا چه د حضرت اسماعیل اولاد پس له ډېرو کالونه د یو خدائ عبادت بیا شروع کړ- او مکه معظمه د مسلمانانو د پاره خاصه شوه- او د اسلام د اقبال ورځې راغلې- حضرت یو څو ورځې قیام وکړ- او بیا مدینې ته بېرته روان شه

## د عربو اسلام قبلول

چه مکه معظمه فتح شوه- او د کفر بیخ د بتانو سره ورک شه نو د عرب په هره علاقه کښې د اسلام چرچه شوه- او ډلې ډلې عالم به مسلمانېدل- غرض دا چه د توحید نشر په عربو کښې راوخوت- او د شرك تیاره ورکه شوه په دغه موده کښې په ملك د عرب کښې قحط سالي شوه- او عالم ډېر د غلې د لاسه لاچاره شه- په شام کښې د نصارو

بادشاهي وه - هغه بادشاه چه دَ عرب له دې حال
نه خبردار شه - هغه په دغه ملک دَ حملې نیت جوړ کړ
او تیاری ئې شروع کړ - حضرت له دې حاله خبردار شه
او دیرش زره خلق ئې دَ هغه بادشاه مخې ته ولیږه - او
حضرت هم ورسره لاړ شه چه دَ تبوک قلا ته ورسیده -
نو بادشاه خبردار شه - او هغه دَ جنګ اراده پرېښوده - دَ
اسلام لښکر هلته شل ورځې وه - او بیا بېرته مدینې له راغی

## بادشاهانو ته دَ اسلام دعوت کول

حضرت په خپله زمانه کښې دَ ایران بادشاه ته دَ اسلام دَ
راوړلو دَ پاره کاغذ ولیږه - مګر هغه ایمان رانه وړ - او
هلاک شه - دَ سلطنت روما قیصر ته چه هرقل باله
شه - حضرت دَ اسلام راوړو کاغذ ولیږه - هغه دَ حضرت
ډیر عزت کاوه - مګر مسلمان نه شه - دَ حبش بادشاه
نجاشي ته دَ اسلام دعوت وکړی شه - او هغه اسلام قبول
کړ - او حضرت له ئې پیشکشونه راولیږل - دَ بني غسان
بادشاه ته ئې دَ اسلام راوړو دَ پاره قاصد ورولیږه - مګر
هغه ونه منل - او قاصد ئې قتل کړ -



دَ ایران بادشاه او دَ بني غسان بادشاه مخالفت وکړ
او خدائیتعالی دواړه برباد کړه -

## دَ حاتم طائي لور سره سلوک کول

دَ حاتم طائي قوم په جنګ کښې ګرفتار راغی - حضرت دَ
حاتم لور چه په هغه قیدیانو کښې وه آزاده کړه - دَ باقي
قوم دَ پاره دَ قتل حکم ورکړ - ځکه چه دې قوم ډیر نالائقه
کارونه کړی وُو - دَ حاتم لور عرض وکړ چه زه دَ هسې
پلار لور نه یم چه ځما قوم به قتل کیږي - او زه به آزاده
کړے شم - ما هم له دوئ سره قتله کړئ - حضرت
وفرمائیل چه ستا پلار حاتم هغه نیک کارونه کړي دي
چه زه به دا ستا قوم دَ هغه دَ نیکو په سبب وبخښم - او
حضرت هغه ټول قوم وباښه - هغو قیدیانو چه دَ حضرت
دا رحم او اخلاق ولیده - ټول مسلمانان شول -
حضرت په لسم کال دَ هجرت چارچاپېره قاصدان
ملکونو ته ولیږل - چه هغوئ ایمان راوړي - او ډیرو
خلقو ایمان راوړ - په دغه کال په مکه کښې منادي

وکړی شوه - چه بیا هیڅ بت پرست او مشرک ته اجازت
نشته - چه په مکه کښې داخل شي -

## حجة الوداع

چه په ټول عرب کښې د اسلام نُور خپور شه - نو حضرت
پوه شه چه اوس ځما د وفات ورځې راغلې - په دې کال کښې
حضرت د یو آخري حج اراده وکړه - او دې حج ته حج الوداع
وائي - په پنځه ویشتمه [٢٥] د میانی د میاشتې د حضرت قافله
مکې ته روانه شوه - هغه وجود چه د یو مرکوی سره له
مکې نه تښتیدلی وه - هغه اوس د یو لک څلویښت زره
خلقو سره حج له مکې ته روان شه - دا د هغه د صداقت
نښه وه - حضرت د عرفات غونډۍ ته وخوت - او خپلو
اصحابو ته په دا رنګ ګویا شه -

ای حاضرو خلقو تاسو واورئ - او خدای خبر دی چه زه
به مخ کښې کال له په تاسو کښې یم او که نه پس اوس چه زه
تاسو ته څه وایم - نو په ډیر فکر سره واورئ - او د زړه په غوږو
ئې واورئ - دا د حج میاشت - او دا ورځ ستاسو پاره ډیره
مبارکه ورځ ده - په هر کال کښې په دې ورځو کښې دلته حج له راځئ



ای مسلمانانو یاد لرئ چه د قیامت په ورځ به تاسو
ټول خدای تعالی ته حاضریږئ - هغه به ستاسو د هر
عمل حساب کتاب اخلی - خبردار چه د ښځو سره بد
سلوک ونه کړئ - صریانو سره د اسې سلوک کوئ لکه چه
خان سره کوئ - که چری له هغو نه خطا وشي - نو معاف
ئې کړئ - یاد ساتئ چه ټول مسلمانان سره ورونړه
دي - د یو د بل حق مه خورئ - پس له دې خطبې نه
حضرت سره د اصحابو دوه رکعته مونځ وګذاره
او بیا مدینې ته روان شو -

## دَ حضرت وفات

د هجرت یولسم کال د حضرت د وفات کال دی - په دې
کال کښې چه حضرت څومره ژوندی وه له مدینې نه بهر
هیچیرته لا نه ړلو - په دې ورځو کښې په عرب کښې یو دوه ؤ
کسو د نبوت دعوی وکړه - د یو نوم مسیلمه کذاب باله شي
او دی د یمامې وه - چه په حجاز کښې یو کلی دی - او بل د یمن
وه - اسود عنسی باله شي - اسود عنسي خو ژر قتل شه
مګر د حضرت د ناجوړتیا په سبب مسیلمه کذاب ژوندی

پاتی شه- او دوئ په عربو کښې ډیر رسوخ پیدا کړی وه- مګر آخر دا کذاب هم دَ حضرت ابوبکر رضه په وقت کښې هلاک شه چه دَ حضرت عمر ددی شپیته کاله شه- او خدایتعالی خبرداد کړ- چه ستا دَ وفات ورځې نژدې شوی- اَوْ یَدْخُلُوْنَ فِیْ دِیْنِ اللّٰهِ اَفْوَاجًا زمانه لئ ولیده- یعنی هغه زمانه چه کفار به ډلی ډلی راتله- او اسلام به لئ قبلوه-

دا آیت هم نازل شه- اَلْیَوْمَ اَکْمَلْتُ لَکُمْ دِیْنَکُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَیْکُمْ نِعْمَتِیْ وَرَضِیْتُ لَکُمُ الْاِسْلَامَ دِیْنًا ه یعنی ای ځما رسوله دی مؤمنانو ته ووایه چه الله تعالیٰ فرمائي چه ما ستا دین بنه کامل کړ- او دی دین نه بل دین کامل نشته- او ما خپل نعمتونه چه دَ هیڅ پیغمبر امت نه وولیدلی په تاسو تمام کړه- او په تاسو هر یو نعمت خپل نازل کړ- او ما غوره کړه چه ستا دَ دین نوم دِ اسلام وِي- یعنی دَ خدائ تعالی دَ هر حکم تابعداري کول-

چه اصحابو دا آیت واورید- نو بعضِ ډیر خوشحاله شو- او بعضِ ډیر غمګین شو- خوشحاله دَ خدائ تعالیٰ په احسانونو شو- او خفه په دی شو چه دین کامل شه



او نعمتونه په مونږ بتول نازل شو- نو دَ رسول دَ خدائ دَ رحلت وقت راغی- او س به له مونږه جدا شي- او خدائ خبر چه پس له ده ځمونږ به څه حال وِي- الله تعالی دَدی خلقو دَ تسلِی دَ پاره په خپل رسول وحِی نازله کړه- چه دوِئ ته ځما وعدی وریادی کړه- چه پس له ستا د وفات نه دوِئ سره ځما څه وعدی دِي- حضرت په دا رنګ هغه وعدی له قرانِ کریم نه بیان کړی-

## + دَ حضرت سره دَ خدائ تعالی وعدی

(۱) اِنَّاۤ اَرْسَلْنَاۤ اِلَیْکُمْ رَسُوْلًا شَاهِدًا عَلَیْکُمْ کَمَاۤ اَرْسَلْنَاۤ اِلٰی فِرْعَوْنَ رَسُوْلًا ه یعنی دا چه ای خلقو ځما دا رسول محمّد په تاسو کښې ځما له طرفه بالکل په هغه شان ظاهر شوی دی- لکه چه دَ فرعون هدایت له ځما دَ طرفه رسول موسیٰ ظاهر شوی وه- هغه څه چه ما موسیٰ ع له او دَ هغه امت له ورکړی وه- تاسوله به هم درکوم- او هغه څه چه ما دَ موسیٰ ع له منکرانو سره کړی وو- ستا سو دَ رسول له منکرانو سره به هم هغه کار کوم

(۲) اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّکْرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ه- یعنی

داچه دا الذکر مراد تر اسلام او قرآن شریف دواړه
دي - ما نازل کړی دے - او هم زه به د هر خطر په زمانه
کښ د ده ساتنه کوم - او رسول د خدای بیا و فرمائیل
چه ان الله یبعث لهذه الامة علی رأس کل مائة من
یجدد لها دینها - یعنی دا چه هر سل کاله چه ځمانه
ورستو چه په اسلام به تیرېږي - نو په دغه سل کاله
کښ به په مسلمانانو کښ د شریعت نه غفلت پیدا شي
او د هغه زمانی ملایان د خپلې کینې د پاللو د پاره په
دین کښې نوی لاری او مسئلی راوکاږي - چه عالم د دوی
په طرف مخ کړي - او دین ته ئی شا شي - نو خدای تعالی له ما
سره وعده کړی ده - چه د هر سلو کالو په سر به زه یو
داسی سړی پیدا کوم چه هغه به بالکل ستا په قدم
روان وي - او په قرآن کریم به عمل کوي - او چه څوک
په اسلام کښ لاری پیدا کوي هغو سره به مخالفت کوي
او د هر بد رسم او د غلطی لاری او مسئلی به مخالف
وي - او د اسلام د نورانی مخ نه به هغه گرد اوچت
کړي - چه دغه تیر شوی سل کالو کښ پر پر یولی وي -



او اسلام به د هغه د لاسه بیا روښانه شي - هغه
سړی چه خدای تعالی به لی په هر سل کاله پس پیدا کوي
هغه ته به مجدد وایه شي - چه تر څو دا دنیا قایمه ده
او اسلام جاري دی - نو دا مجددان به په هر سل کاله
پس په دی امت کښ پیدا کیږي - لکه چه د حضرت موسی
علیه السلام نه ورستو هر سل کاله پس په بني اسرائیلو
کښ به د توریت د هدایت د پاره دولس نقیبان یا مجددان
لکه حضرت ننثانئیل - حضرت جدعون - حضرت
شموئیل - حضرداؤد - حضرت الیاس - حضرت یونس
حضرت یسعیا - حضرت یرمیاه - حضرت ذکریا - حضرت
ملاکي - یونوم د مجدد نه دی معلوم - حضرت ذکریا ثاني
او په څوارلسمه صدۍ کښ حضرت عیسی علیه السلام
پیدا شه - د حضرت موسی علیه السلام - او د حضرت
عیسی علیه السلام پوره حال وگوري ځمونږ کتاب
**وفات المسیح** کښ -

(۳) وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ
لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِيْنَهُمُ الَّذِي ارْتَضٰى لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ
مِّنْ بَعْدِ خَوْفِهِمْ اَمْنًا يَعْبُدُوْنَنِيْ لَا يُشْرِكُوْنَ بِيْ شَيْئًا
وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ۝ یعني
دا چه د اخلق خبر کړه - چه دَ الله تعالیٰ په تاسو مسلمانانو
کښ دَ هغه چا سره دا وعده ده - چه څوک دَ زړه دَ
اخلاصه ایمان لري - او عمل هم نیک کوي - هغه عمل
چه قرآن کریم ورته ښائي - نو ضرور به دغه پاک
عالم زه په دی مزکه خلیفه کړم - یعني دوئ به
ستا قایم مقام کړم - ستا په شان به ورسره مدد
کوم - او ستا په شان به پرِ خپل نعمتونه نازل کړم -
لکه چه ما ستا دَ زماني نه وړنبې دَ حضرت موسیٰ ع م
په امت خپل نعمتونه نازل کړي وو - او هغو کښ مِ ..
خلیفګان پیدا کړي وو - دا قاعده به ستا دَ امت
سره هم جاري لرم - هغه دین چه اسلام دی - او ما
دَ دوئ دَ پاره غوره کړی دَی - هر چري چه په دغه
دین دَ خطر زمانه پیدا شي - نو زه به دَ دی دین مدد
کوم - او دَ دی دین دَ قائم کولو دَ پاره به یو خلیفه



همیشه رالیږم - لکه چه دَ موسیٰ دَ دین دَ پاره به په
هر صدی کښ یو خلیفه پیدا کیده - لکه حضرت
داودؑ - حضرت سلیمانؑ - حضرت الیسع - حضرت
شمویل - حضرت یحییٰ - حضرت ذکریا - حضرت
یسعیا - حضرت عیسیٰ وغیره - او دَ دوئ هغه خوف
به دَ هغه زماني دَ خلیفه په سبب به ورکوم - یعني
هغه به دَ هر خوف دَ ورکولو دَ پاره کوشش کوي - او پس
له دغه خوف نه به دَ هغه خلیفه په سبب امن پیدا
کوم - دَ دپاره دَ دی چه دا مسلمانان صرف خما عبادت کوي
او دَ هر قسم له شرکه خلاص شي - او هغه چا چه دا وعده
ورته معلومه وي - او دَ هغه خلیفه ګانو ته په خپله زمانه
کښ انکار وکړي - نو هغه عالم تاسو پوه شئ چه بدکاره عالم دی
دا دي دَ الله تعالیٰ وعدی - چه په قرآن کریم کښ دَ
خپل رسول په ذریعه مسلمانانو ته بیان شوی - او بیا
خدائ تعالیٰ دا هم پوره کړی - یعني دا چه په هره زمانه
کښ چه په اسلام به خوف راغی - نو خدائ تعالیٰ به یو داسی
سړی ضرور پیدا کړ - چه دَ هغه په ذریعه به ئې - دَ

اسلام صد دو کړ- لکه چه عمرؒ ابن عبد العزیز- امام مالکؒ
امام ابو حنیفهؒ- امام احمد حنبلؒ- لویؒ غوانؒ دَ بغداد
معین الدینؒ دَ اجمیر- شیخ احمدؒ دَ سرهند- شاه ولی اللهؒ دَ
دهلي- او نور بیشماره عالم- په هر سل کاله پس په اسلامؒ
کښ پیدا شو- او په دوي کښ دولسؒ مجدد ان پس له رسول
الله نه په دیارلسو صدو کښ پیدا شو- او په دی څوارلسمه
صدي حضرت غلام احمد دَ قادیان مجدد وه-
غرض دا چه حضرت رسول الله دَ اصحابو په ښه شان سره
تسلي وکړه- او په دی ایام کښ حضرت ناجوړه شه- یو
څو ورځي دَ حضرت تبه وه- او ډیر کمزوری شه په دی
ناجوړتیا کښ دوه دری ځله مسجد ته دَ نمانځه دَ پاره
لاړ- او حضرت ابو بکرؓ لئ مخکښ امام کړ او وړسي لئ نمونځ
وکړ- آخر کار مرض دومره لاچاره کړ- چه دَ لهر دَ رتلو نه
پاتئ شه- او دولس ورځي لئ ناجوړتیا تیره کړه- دَ ګل په
ورځ په دولسمه دَ وړبي خور دَ هجرت په یولسم کال
دَ بي بي عایشیؓ کره لئ رحلت وکړ-
(اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رَاجِعُوْنَ ؕ)



دا څمونږ دَ حضرت رسول علیه الصلوة والسلام حال وه-
چه ما ډیر مختصر بیان کړ- دَ پاره دَ دی چه دَ حضرت دَ
حالاتو نه ډیر کم عالم په پښتنو کښ خبردار دي- بلکه
ډیر عالم دَ حضرت نوم هم نه پیژني- او که چرته نوم
لئ زده کړی وي نو دا خو ورته بالکل نه وي معلوم چه
په کوم ملک کښ تیر شوی وه- کله پیدا وه- څه لئ کړی وو
کله وفات شه- او کوم ځائ ښخ دی- ډیر افسوس دَ هغو
خلقو په حال دی چه دَ هغه کلمه وائي- او دَ هغه په
مذهب ځان بلي- او دَ هغه دَ نوم او دَ حالاتو نه خبر نه
دي- حضرت چه په مدینه منوره کښ وفات شوی وه
او دری ورځي جنازه پرته وه- عالم به دَ لوی لوی ښه
راتله او جنازه به لئ کنداوله- او پس له دری ورځو
په مدینه منوره کښ دَ حضرت عائشیؓ کره دفن
کړی شه- او حضرت ابوبکر الصدیقؓ دَ حضرت نه
وروستو په مسلمانانو خلیفه مقرر شه- پس دَ حضرت
ابوبکرؓ نه حضرت عمرؓ دویم خلیفه شه- او دَ حضرت
عمرؓ نه وروستو حضرت عثمانؓ دریم خلیفه شه- او

بیا څلورم خلیفه حضرت علی وه - او د دی څلورو خلیفګانو په وقت کښی اسلام په عرب په شام - په ایران - خراسان ترکستان - کوه قاف - مصر - حبش - افریقه کښ خور شه - او تقریبًا د ا ټول ملکونه په دیرشو کالو کښ د مسلمانانو په قبضه کښ شو - او پس له دی نه - بیا اسلام په نورو ملکونو خور شه - او لا تر اوسه خوریږی - او په دی دیارلس سوو کالو کښ - اتیا کروړه خلق د اسلام تابع شو - او اوس د دنیا په هره کونه کښ مسلمانان موجود دي - او خدای تعالی د هغه وعدی په موجب چه د رسول د خدای سره کړی وه په هره زمانه کښ د اسلام د مدد د پاره هر سل کاله پس خلیفه پیدا کوي - او له دغو خلیفګانو نه

یو د ی څوارلسمی صدی په سر حضرت

**غلام احمد د قادیان وه**

او اوس د هغه څه

قدر ی حال لیکم





# دویم باب

## سوانح د سیدنا حضرت غلام احمد علیه السلام

**نسب** - حضرت غلام احمد علیه السلام بن حضرت غلام مرتضی صاحب - بن حضرت میرزا عطا محمد صاحب - بن حضرت میرزا ګل محمد صاحب بن حضرت میرزا فیض محمد صاحب - بن حضرت میرزا محمد قاسم صاحب - بن حضرت میرزا محمد اسلم صاحب - بن حضرت میرزا محمد دلاور صاحب - بن حضرت میرزا الله دین صاحب - بن حضرت میرزا جعفر صاحب - بن حضرت میرزا محمد بیک صاحب - بن حضرت میرزا عبد الباقی صاحب بن حضرت میرزا محمد سلطان صاحب - بن حضرت میرزا هادی بیک صاحب - چه مورث اعلی د دی خاندان دی -

**خاندان** - د حضرت خاندان برلاس دی - او برلاس د مغلومو اعلی قوم دی - دا خاندان په

ابتدا کښې د ترکستان د سمرقند نومی ښهر کښې آباد وه
او سمرقند په هغه زمانه کښې د فارس د باد شاه د
حکم لاندې وه - سمرقند ته دا قوم د فارس نه راغلی وه
او په فارس کښې دا تبر د حضرت سلمان فارسي رضی
الله تعالی د نسل نه دی - حضرت سلمان فارسي
د حضرت اسحق علیه السلام اولاد دی - او د حضرت
رسول کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې حضرت
سلمان اسلام قبول کړی وه -

هغه وقت چه سورة جمعه په حضرت رسول کریم صلعم
نازل شه - او حضرت دا آیت ولوست - هُوَ الَّذِیْ
بَعَثَ فِی الْاُمِّیّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ یَتْلُوْا عَلَیْهِمْ اٰیٰتِهٖ وَ
یُزَکِّیْهِمْ وَیُعَلِّمُهُمُ الْکِتٰبَ وَالْحِکْمَةَ وَاِنْ کَانُوْا مِنْ
قَبْلُ لَفِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ۝ وَّاٰخَرِیْنَ مِنْهُمْ لَمَّا یَلْحَقُوْا
بِهِمْ وَهُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ ۝ - ترجمه - چه الله تعالی
هغه لوئ ذات دی - په امیین (عرب) کښې ئې رسول
(محمد) او هم د هغه نسل نه مبعوث کړ - د پاره د دی
امر چه دا اهل عرب تزکیه وکړی - او هغوته علم



د الکتاب (قرآن) وښائي - او د حکمت تعلیم ورته
وکړي - او دا عالم پخواله دی رسول نه په ډیر پخه
ګمراهي او جهالت کښې پراته وو - او خدائ تعالی به په
آخرین کښې یو رسول د هغه قوم نه مبعوث کړی - او
هغه آخرین لا دی مؤمنانو کښې داخل نه دی -
اصحابو کښې چا د حضرت نه پوښتنه وکړه - چه دا رسول
او آخرین څوک دی - حضرت رسول کریم صلی الله علیه و
سلم - د حضرت سلمان فارسي به اوږه لاس کیښود چه
هغه آخرین د ده قوم دی - او هغه رسول د ده د نسل
نه دی - لکه چه په دی حدیث کښې دي - عن ابی هریرة رض
قال کنا جلوسا عند النبی اذ انزلت سورة الجمعة فلما
نزلت وآخرین منهم لما یلحقوا بهم قالوا من هؤلاء
یا رسول الله قال وفینا سلمان الفارسی قال فوضع
النبی صلی الله علیه وسلم یده علی سلمان ثم کان
قال لو کان الایمان عند الثریا لناله رجال من هؤلاء
متفق علیه -
حضرت ابو هریره رض روایت کوی - چه هغه وقت چه

په حضرت سورة جمعه نازل شه نو موږ هلته ناست وو- هغه ساعت چه اٰخَرِیْنَ مِنْهُمْ لَمَّا یَلْحَقُوْا بِهِمْ نازل شه - نو بعضی صحابه وُپوښتنه وکړه - چه یا حضرت دا آخرین کوم خلق دِی - او هغه وقت حضرت سلمان فارسیؓ هم موجود وه - چه حضرت خپل لاس مبارک دَ سلمان په اوږه کیښود - او فرمائیل ئې چه که ایمان دنیانه ثریا ته لاړشِی - نو دَ دوئِ نه به بعض خلق هغه بیا راکوز کړي - حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم دا هم فرمائیلِی دِي - چه سلمان مِنَّا اهل البیت چه حضرت سلمان فارسِی څمونږ په اهل بیت کښ داخل دیٓ

دَ خاندان برلاس یو څو مشران دَ امیر بابر بادشاه په وقت کښ دوه دوه نیم سوه تېر- او نوکرانو- او دَ مریدانو سره دَ سمرقند نه هندوستان ته راغلو- او پنجاب کښ په هغه مقام کښ دِیره شو چه اوس قادیان نومی کلی پرِ آباد دی-

## قادیان ته ولی قادیان وائِ

په کوم مقام کښ چه دغه تېر دِیره شه هلته هغو



یو کلی بنا کړ- او دَ هغه نوم ئې اسلام پور کیښود- چونکه دا کلی دَ ماجهی په علاقه کښ وه - خلقو به دی ته اسلام پور ماجهي وی - ځ په پنجابی کښ میښی ته وائ او په دغه علاقه کښ میښی ډیری وِي - او سرسرهم په دغه علاقه کښ دی - چه خلق تِرسندکان او میښی داولی- دغه علاقی ته څکه ماجه وائِ

دی خاندان کښ دَ دین دارِي او دَ علم همیشه ډیر شغل وه دی تېر کښ به دَ دغه علاقی قاضِي هم دَ دهلی بادشاه مقرراوه - خلقو به دغه کلی ته اسلام پور قاضِی ماجهی وی - هرکله چه دا نوم ډیرا وږد شه نو اسلام پور خلقو پرېښود - او صرف قاضی ماجهی شه - بیا غه مده پس خلقو صرف قاضِی کړ - او ضٓ کله دَ دال آواز هم ورکوِي - نو قاضِی نه قادِی پاتی شه - او س دَ دغه علاقی خلق ورته کادی - او قادِي - یا کادیان او قادیان وائِ-

دَ دی تېر هلته یو لوئ حکومت شه - او لوی لوی پوری به دَ دغه خاندان حکم چلیده - یو به داچه بنه تکوم

تبر وه - او د دهلي بادشاهانو ورله د میرزا خطاب
ورکړی وه - یعني امیر زاده - او بل ډیر دیندار او
صاحب د علم خاندان وه - د سکانو د بادشاهي په
زمانه کښ د حضرت صاحب ورور نیکه حضرت میرزا
ګل محمد صاحب ډیر لوئ مشهور رئیس وه - هغه په پنځه
اتیا کلو حکومت کاوه - سکانو په دغه ریاست هم حملې
شروع کړې - او په دغو حملو کښ ټول ریاست تر د لاس
لاړ شه - او څه کلي په سبب د خپلې فیاضۍ او ځوان
مردۍ لئ بعض هغه مسلمانانو رئیسانو ته داسې ورکړ
بخښلي وه - چه د دغه حملو په سبب نادار شوي وو -
د قادیان د هر بشر د هغه پاک وجود په وقت کښ یو
دینداره نماز گذاره وه - د قرآن کریم حافظان هلته
موجود وو - او د خدائ او د رسولؐ شریعت چرچه وه
د خواوشا خلقو به قادیان ته د دغه ځائ مکه وې - حضرت
میرزا ګل محمد صاحب په خپله هم ډیر متقي او پرهیزګار
انسان وه - او صاحب د کشف و کرامت وه - نه صرف د زماني
یو ولي وه - بلکه ډیر بهادر او با رعب سړی وه - دا میرزا صاحب



چه کوم وقت وفات کیده - نو دا تکو په مرض ناجوړه
شه - بعضي طبیبانو یو قسم دارو تجویز کړه چه په هغه
کښ د شرابو هم یوه حصه وه - دې میرزا صاحب د غه
دارو په سبب د شرابو استعمال نه کړه - او وې لئ چه
که خدائ تعالی شفا راکوي - نو څه بل څه به بها نه
شي - آخر په دغه مرض وفات شه - او پس د هغه
نه د هغه ځوئ حضرت میرزا عطا محمد صاحب - د
حضرت صاحب نیکه جانشین شه - دغه زمانه کښ چه
د سکانو سره د هغو جنګ وشه - نو هغه جنګ کښ سکان
فتحمند شو - او ټول کلي ئې د قادیان د ریاست په خپله
قبضه کښ کړه - یو صرف قادیان تریچ پاتې شه - دا په داچه
د قادیان نه دغه وقت کښ چار چاپیره یو لویه مضبوطه
قلا وه - او د هغه دیوال ډیر زیات پلن وه - او د هغه قلا
په برجونو کښ توپې به پرتې وې - یو ورځ د سکانو یو ټولی
د حضرت میرزا عطا محمد صاحب په اجازت سره - د
قادیان قلا کښ داخل شه - او هغو د ننه په چل هنر
قبضه شروع کړه - هغه وقت د حضرت صاحب خاندان

ډیو تباه کړی شه - او دَ قادیان جماعتونه وران کړی شو - او باغونه پریکړی شو - او بعض جماعتونه سکانو درمسالونه کړل - او دَ قادیان یوه لویه کتب خانه چه په هغه کښ صرف پنځه سوه قرآن کریم قلمی وو - وسوزولی شوه - آخر دغه خاندان ته حکم وشه - چه قادیان خالی کړئ - او ټول ښځی او نر دَ قادیان نه روان شول - او اسباب ئی ځان سره دَ غوایانو کاډو کښ واچاوه - او دَ پنجاب یو بل ریاست ته لاړل - حضرت میرزا عطا محمد صاحب له دښمنانو زهر ورکړه - او هغه وفات شه - او پس دَ هغه نه دَ مهاراجه رنجیت سنګه په آخری زمانه کښ دَ حضرت صاحب پلار حضرت میرزا غلام مرتضی صاحب جانشین شه - او هغه قادیان ته بیرته سره دَ تبر راغی - او مهاراجه رنجیت سنګه صرف پنځه کلی بیا ورته وسپارل - او باقی دَ سکانو په سلطنت کښ داخل شو - حضرت میرزا غلام مرتضی صاحب دَ دغه علاقی لوئ رئیس او صاحب دَ عزت او خاوند دَ مرتبی وه - هغه وقت چه دَ انګریزی سلطنت راج په هندوستان - او



پنجاب کښ ښور شه - نو سرکار به دَ حضرت میرزا غلام مرتضی ډیر لوئ عزت کاوه - او دَ وِیسرائی او کورنر جنرل په دربار کښ ورله کرسئ هم ورکیدی شوه په ۱۸۵۷ع کښ چه دَ دهلی غدر وه - نو حضرت میرزا غلام مرتضی صاحب دَ خپل ځان نه پنځوس سواره دَ سرکار انګریزی امداد له ورلیږلی وُو - او دَ آینده امداد وعده ئی هم ورسره کړی وه - صاحب کمشنر او صاحب ډپټی کمشنر به ورله کورته او ځائ ته ملاقات له راتلل - په تذکره دَ رئیسانو دَ پنجاب کښ دَ حضرت میرزا غلام مرتضی صاحب ذکر په ښه شان سره موجود دی -

## پیدائش

حضرت غلام احمد علیه السلام په سنه دولس سوه یو ۱۲۵۱ پنځوس هجری کښ پیدا شوی دی - دَ حضرت د تولد نه اول یوه جنئ وزیږید له - بیا حضرت صاحب پیدا شه دَ حضرت صاحب یو شرور هم موجود وه - چه غلام قادر نامه ئی لرله -

حضرت چه هلک وه - او دَ مور له غیږی نه شه کوز - او به

قدم آخستو بوه شه - او دَ نورو هلکانو سره دَ لوبو لائق
شه نو حضرت هیچری دَ هلکانو سره لوبې و نه کړې - او که
هیچری لوبې به ئې کولې نو دَ هغو په کنده لوبو کښې هرگز نه
شاملیدلو - دَ حضرت صاحب دَ خولې نه کنځل هیچری نه وو
ختلي - دَ قادیان هندوان مسلمانان دَ دې خبرې گواهي
لي - چه دَ حضرت هیچری دَ عامو هلکانو په شان عادتونه
نه وو - له ابتدا نه یوازې او سیده ئې خوښ وو

## تربیت او تعلیم

حضرت چه داووه کالو شه نو په سن دولس سوه اته (١٢٥٨)
پنځوس هجری کښې ورله والد صاحب یو اُستاد فارسي خوان
مقرر کړ - او هغه حضرت صاحب ته قرآن کریم او بعضې
کتابونه دَ فارسۍ ئې وښودل - دَ دې اوستاد نوم فضل
الٰهي وه - حضرت صاحب چه دَ دولسو کالو شه (سنه ١٢٦١ھ)
نو یو بل استاد ورله مقرر کړی شه - دَ ده نوم فضل احمد
وه - حضرت صاحب ته ئې په ډیرې خوارۍ او په
کوشش سره بعضې کتابونه دَ نحو دَ قواعد او څه نور کتابونه
وُلوکړل - پس له دې نه چه حضرت صاحب چه دَ اتلسو (١٨)



کالو شه (سنه ١٢٦٨ھ) نو یو بل اوستاد ورله دیوځو
کالو دَ پاره مقرر شه - او دَ دې استاد نوم گل علي شاه وه
دَ دې اوستاد نه حضرت صاحب نحو - منطق - حکمت
او دَ بعضې نورو علوم مروجه کتابونه وَلوستل - څه کتابونه
دَ علم طب دَ خپل پلار نه ئې ولوستل - او دَ دوئ دَ طبابت
په علم کښې ډیر ماهر سړی وه - او حاذق طبیب وه - حضرت
صاحب فرمائي "چه ځما په دغه زمانه کښې دَ کتابونو مطالعه
کولو او دَ هر علم دَ لوستلو ډیر شوق وه - چه گویا کښې زه
هم ودې دنیا کښې نه اوسم - او والد صاحب به اکثر
منع کولم چه دَ کثرت دَ مطالعې نه مې گنړه صحت خراب نه
شي - او بل دائې هم مطلب وه چه زه دَ دې شغل نه
ځان فارغ کړم - او دَ والد صاحب په دنیاوي
غمونو او جگړو کښې شریک شم - لا چار ما دَ خپل پلار دَ
حکم په موجب کتابونه لوستل کم کړل - او دَ هغوئ
خدمت ته او فرمان بردارۍ ته مې مخ کړ -

## دنیاوي کاروبار

دغه ایامو کښې ځمونږ دَ والد صاحب ډیر کوشش دَ دې

امروه چه څمونږ دَ لاسه تللی کلی او جایداد بیر ته
راکړی شِی - او په عدالت انګریزی کښ دَ دی امر
دَ پاره ئې مقدمات دائر کړی وو"

دَ حضرت صاحب هم زولی والئ چه کومه ورځ چه به
تاریخ مقرر وه - نو حضرت صاحب به دَ تاریخ پیشئ
له لاړ - او کچرئ کښ به یو خوا ته په مونځ او عبادت
کښ مشغول شه - دَ کچرئ به عدالت کښ به مقدمه
پیشه شوه - دَ کچرئ نقیب به نادی وهلی - حضرت صاحب
به په نمانځه ولاړ وه - مقدمه به په عدم پیروی
کښ خارجه شوه - دَ حضرت صاحب دَ والد چه دیری
مقدمی په دا رنګ بربادی شوی - نو هغوئ دَ مقدمو
دَ پیروی نه حضرت صاحب منع کړ - او دَ زمیندارئ
کار ته ئې ورو ړاندِ کړ - چه دَ مزارعانو او دَ برخه
خورو نګرانی کوه - حضرت صاحب فرمائی چه دا هم
مانه نه شوه کیدی - ځکه چه زه دَ دی طبیعت او دَ
فطرت سړی نه وم - دَ حضرت صاحب دی قسم لاپروائ هو
دَ حضرت صاحب والد به اکثر ناراضه لاړه - او دَ هغه دَ



او دَ مهربانئ نه به ورته ئې وِچه څه دَ دنیا په طرف
هم متوجه شه - مګر دَ حضرت صاحب دَ دنیا دَ کاروبار
نه ډیر سخت نفرت وه - حضرت صاحب فرمائی - چه
یو ځل یو کمشنر صاحب - چه دَ هغه علاقی یو لوئ حاکم
وه - قادیان ته راتلو - ما ته والد صاحب وفرمایل چه
دَ هغه دَ استقبال دَ پاره یو دوه کروه مخی ته لاړ شه - ځما
طبیعت ناساز هم وه - او زه هم دَ دنیاوی خلقو خوشامند
کولو نه نفرت کاوه - لاړ نه شوم - ځما پلار په دی امر
هم خفه شه - دَ هغه دا مطلب وه - چه دَ دنیا په کارو
بار کښ غرق شم - او دا له ما نه نه شو کیدی - مګر بیا
هم ځنی ځنی کار دَ والد صاحب دَ اطاعت او دَ خوښئ
دَ پاره به ما وکړ - څه به هم دَ هغه خدمت کاوه او څه
به هم ورته دعا کوله - چه دَ دنیا دَ دی ګند نه خلاص
شي - هغه به خلقو ته اکثر وِ - چه زه صرف دَ مهربانئ
او دَ ترحم نه غلام احمد ته دَ دنیا دَ کاروبار نصیحت
کوم - که نه وِی نو اصل خبره داده چه ما خپل عمر
هم عبس دَ دنیا په ګند کښ ضایع کړ -

# ملازمت

حضرت صاحب چه د پنځه ویشتو ۲۵ کالو شه (سنه ۱۲۷۵ ه)
والد صاحب ئې دا فکر وکړ چه نه دَ زمیندارۍ انتظام
نه دَ مقدماتو پیروي کوی - نه په کور کښ دَ میلمنو
وغیره وُ پکار ېږی - آخرکار په سیالکوټ کښ ئې په
یو دفتر کښ ملازم کړه - هلته حضرت صاحب محافظ
دفتر شه - او قریب دَ سلو روپو پوری دَ حضرت صاحب
تنخواه مقرره وه - حضرت صاحب دغه ملازمت په
ډیر کراهیت او نفرت سره یو څو کاله وکړ - دَ ملازمت
وقت ئې به ډیر دیندارۍ او په عبادت کښ تیر کوی
وه - چنانچه دَ سیالکوټ خلق دَ هغې زمانې ددی
امر گواهان دي - په دغه زمانه کښ حضرت صاحب
فرمائي چه ما ته تجربه هم حاصله شوه - چه په
دفترونو کښ او ملازمتونو کښ سرکاري نوکران او
منشیان څنګه ګذران کوي - او دَ هغوئ دغه ګنده
زندګي م هم په خپلو سترګو لیدله - چه له چا نه به
منشیانو پیسې غوښتې - او چا نه به نذرانه غوښتله



دَ حضرت صاحب والد ته دَ حضرت جدائي ګرانه شوه
او په نوکرۍ کښ دَ حضرت صاحب زړه هم نه لګیدلو
آخر والد صاحب ورته کاغذ ولیکلو - چه نوکری پرېږده
او کورته راځه - حضرت صاحب چه دا کاغذ ولوست
ډیر خوشحاله شه - او زر ئې استعفاء ورکړه - او ځان ئې
دَ دغه ګند نه خلاص کړ - او قادیان ته راغی -

حضرت صاحب قادیان کښ دَ والد صاحب دَ حکم په موجب
به هم دَ زمیندارۍ برخه خوړو نګرانی کوله - او هم به
زیات وقت دَ قران کریم او دَ تفسیرونو او دَ حدیثونو مطالعه
کوله - او اکثر به ئې هغه کتابونه خپل پلارته هم
آورول - دَ حضرت صاحب والد په آخر عمر کښ ډیر غمژن
او خفه به وه - ځکه چه اویا اتیا زره روپۍ ئې په
مقدماتو ولګولې - او هغه پخوانۍ تللې ملکونه - کلي
او جایداد بیرته لاس له هم رانغله - ددې ناکامیابۍ
به دَ حضرت صاحب دَ پلار حالت اکثر په اضطراب
او په غم کښ لاره - حضرت صاحب فرمائي چه دَ خپل
پلار دغه ژوند ځما زړه لا دَ دنیا دَ محبت نه تور کړ -

اګر چه په دغه وقت کښې ځمونږ يو څو کلي لا باقي وو - او
دَ سر کار نه څه پنشن هم ځما دَ پلار صاحب دَ ملازمت
مقرر وه - مګر بيا هم ځما والد صاحب به دَ تير شوي
دور غم کاوه - او اکثر به هغوئ وِ چه که دومره
سعي مِ دَ خدائ دَ رضا منديَ دپاره کړي وي - نو
اوس به غوث يا قطب وم - غرض دا چه دَ ژوندون
په آخرو ورځو کښې ډير پښيمانه شوي وه - دَ مرګ نه
يو څو مياشتې اول ئې يو جماعت بنا کړ دَ خپل عبادت
دَپاره - او دَ قاديان دَ بازار چوک کښې يو لوئ جماعت
ئې جوړ کړ - کُندِ دائې دَ مغفرت سبب شي - او وصيت
ئې وکړ چه ما دَ دې جماعت په يوه ګوښه کښې ښخ کړئ
چه هر وقت په دعا کښې يادېږم - او هغه وقت چه
دا جماعت مکمل شه - او صرف يو څو خښتې به لا
دَ فرش پاتې وِي - چه دَ حضرت صاحب والد دَ
پيچش په ناجوړتيا ناجوړه شه - او يو څو ورځو
پس مړ شه - او په دغه جماعت کښې يو خوا ته ښخ
شه - دَ وفات په وقت ئې - قريبًا اتيا کاله



يا نهه دَ يا سه عمر وه - دَ حضرت صاحب عمر به دَ
والد صاحب دَ وفات په وقت کښې شايد څه کم څلوېښت
کاله وو - حضرت صاحب وائي چه هغه يو څو کاله
چه ځما دَ دنيا په کاروبار کښې تير وو - زه هغه ضائع
ګڼم - او دَ هغو ورځو دَ پاره ډير ارمان کوم - او هغه
کسان چه دَ دنيا طلب کوي - هغوئِ به هم دغه سې
ارماني شي - پس دَ اوس نه پښيماني بکار ده -

## دَ حضرت هلکوالي او ځوانيُ

دَ هلکوالي هغه زمانه چه هلکان په کښې هر قسم لوبې
بيهوده کارونه - غلا دروغ ويل - کنځل کول -
بد چلني عادت وِي - دَ قاديان خلق هندوان
او مسلمانان ټول دا وائي - چه حضرت صاحب
کښې دَ هلکوالي په زمانه کښې دَ دې کارونو نه
يو عيب هم نه وه - دَ ځوانيُ په زمانه کښې چه ځوانان
کوم نالائق کارونه او ناګفته به حرکات کوي - هغه خو
هرګز حضرت صاحب کښې نه وُو - بلکه دغه عمر ئې
دَ قرآن کريم په مطالعه او دِيني کتابونو په شغل کښې

تېرشوی دی - حضرت صاحب دَ اُووکالو نه تر ښلو کالو
پورې تعلیم وکړ - او سبق لئ زده کړ - تر پنځویشتم کاله
پورې طب او حکمت وغیره لئ وکوت - ترا ته ویشتم
کاله پورې ئ ملازمت وکړ - دولس کاله پورې دَاسلام
نور کتابو نه وکتل - او عبادت لئ وکړ -

## عبادت

حضرت صاحب چه دَ دیرشو کالو شه نو نفلي روژی
لئ هم شروع کړی - چنانچه حضرت صاحب
فرمائي چه ما یو بزرگ معمر سپین ږیری په خوب
کښ ولید لو - چه ما ته وائي چه روژی شروع کړه
ځکه چه روژی دَ آسماني نور دَ جذب کولو دَ پاره
ډیری ضروري دي - او دَ نبوت دَ خاندان دَ پاره
دا سنت دی - په دی خیال ما دا لاره اختیاره کړه
چه دَ کور نه به م ډېر خپل خوراک او طعام راوغوښت
او هغه به م بعض یتیمانو له ورکو - چه هلته به
ما له د خوراک په وقت راتله - او پخپله به م تول
ورځ روژه وه - بی له خدایه بل هیچا نه ځما دَ دی



روژو علم نه وو - پس له یو دوه ؤ هفتو نه ما ته دا امر
ډیر آسان معلوم شه چه یو وقت خوراک وکړم - ځه مده
م یو وقت طعام وخوړ بیا م دا هم کم کړ - تر دی حده
پورې چه ما به انه پهوه وقت په یوه ډوډئ تیراوه
بیا م دا خوراک هم تر یو څو مثقالو ورسوو - شاید چه
اتو نهو میاشتو پورې ځما دا حال وه - په ما کښ دَ صبر
دَ برداشت طاقت پیدا شه - ما په دی روژو کښ ډیری
عجیبه عجیبه خبری ولید لی - او ډیری مکاشفی را ته
وشوی - او بعض لوئ لوئ اولیاؤ دَ پیغمبرانو ملاقات
م نصیب شه - یو ځل عین په بیداریٔ کښ م جناب
سیدنا محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دَ
سیدنا امام حسن او امام حسین او حضرت علی علیهم
السلام - او حضرت فاطمه رضی الله تعالی عنها ولیدل
او دَ نور پلوشی م په رنګا رنګ شکلونو کښ ولید لی - او
ما به لید ل چه دَ آسمان انوار راځي - او په ما باندِ
نازلیږِي - او ځما روح به ډیر خوشحالید لو - او لذت
به لئ موند لو - په دی حالت کښ ځما نفس داسی پامال

شه - چه ما ځان کښ دومره طاقت لیدلو - چه که یو
لوئ تکړه غټ او مضبوط پهلوان سره ما په یوه کوټه
کښ څوک بند کړي - نو چه زه څو پوری دَ خوراک خواهش
ظاهروم - هغه به مروي - دا څما یقین شه چه هغه
کسان چه ښه ښه خوراکونه خوري - او په خپل ځان
مین دي - او سر له کیدۍ نه زار گڼړي - هغوئ دا روحانی
منزلونه او مقامونه نه شي قطع کولی - البته زه دا هم
نه غواړم چه هر هغه څوک چه ځان کښ دا طاقت نه
ویني نو دا تکلیف دِ په ځان قبلوي - ځکه اکثر دَ جاهل
عابدانو په ویلو سره بعض خلق دی قسم تکلیف اختیارولو
په سبب دَ سل او دَ دِق په مرضونو کښ گرفتار شوي وي
او ډېر زر فنا شوي دي - زه داسی ریاضت ښه نه گڼم
چه په ځان دَ حده زیات بار کیښودی شي - او آخر کښ
دماغ ئې خشک شي - او لیونی او مجنون یا بد اخلاق
شي - او په بل ځائے کښ حضرت صاحب فرمائی چه ما دا
امر دَ څه وقت دَپاره اختیار کړی وو - او همیشه
دا نه کوم - البته هغه صبر او برداشت همیشه لرم



## په تیره صدیٔ کښ مذهبونه ؛

هغه وقت چه دَ هجرت دیارلسمه صدیٔ په ختمیدو
شوه - او دَ حضرت صاحب عمر په دولس سوه یونوی (١٢٩٠)
هجری کښ دَ څلویښتو کالو شه - نو دغه وقت کښ دَ دهریهٔ
مذهب دَ آریهٔ مذهب دَ هندوانو - دَ نصارئ
زور وه - او په اسلام کښ دَ دوه اویاؤ فرقو نه زیاتی
پیدا شوی وی - زه دَ دی ټولو تفصیل څه قدر دلته
بیانوم -

(۱) دَهریه - هغه خلق دي چه دَ جهان پیدا کونکی
هیڅوک نه گڼړي - او نه خدائ موجود گڼړی - او نه
رسولان او قیامت مني - دا گروه په هر مذهب او
هر ملک کښ په کثرت وو -

(۲) آریه - خدائ تعالیٰ مني - مگر دَ جهان پیدا کونکی
نه مني - روح او ماده دَ خدائ تعالی سره قدیم
گڼړي - وید نومی کتاب الهامی شریعت گڼړی - او پس
له دی نه الهام او وحی بند گڼړي - سزا جزا په دی

دنیا کنړی - چه دَ نیک اعمالو په سبب انسان باد شاه شي
دولتمند شي - او خوشحاله وِي - دَ بدو افعالو په سبب
انسان دِ نکر شي - کاڼړی بوټی شي - او انسان هر شکل
قالب بد لوِی - او بیا دنیا ته راشي - او بتول پیغمبران او
اولیا د روغژن کنړی - په نیوک کښ مبتلا دِي -
(۳) هندوان خدائ تعالیٰ هم مني - او دَ هغه ظهور
په شکل دَ انبیاؤ او اولیاؤ کښ هم مني - او دَ خپل هر
رسول - او هر نبی حتی چه دَ هر عجیبه او دَ لوی ځیز
عبادت کوِي - دَ غیر الله نه مدد غوادِي - دَ مذهب
پابندِی چندان ضرورِي نه کنړِي - دَ قومیت په سبب
دَ مذهب پیروِي کوِي - ددوی دیرش دیوتا وُ
عبادت کوِي -
(۴) نصاریٰ - خدائ تعالیٰ یو هم کنړی او دری هم - یعنی
وائِ چه خدائ چه پلار دَی - او حضرت عیسیٰ علیه
السلام چه څوی دی - او روح القدس چه ترمینځه
واسطه دی - دری واړه خدایان دِي - او بیا دری واړه
یو دِی - دی ته تثلیث وائِ حضرت عیسیٰ علیه السلام



خالق - رازق - عالم الغیب - حی - او قدیر کنړی - او
دا وائ چه ځان لئ په صلیب قربانِی کړ - چه دَ هغه
پیروان نجات بیا مومِي - نجات موقوف په کفاره
یعنی دَ حضرت عیسیٰ په قربانِی چه ایمان راوړی
شي - کنړِي - او شریعت چه انبیاؤ سبو ولی وه لعنت
کنړِی - او هر نبی او رسول فریبي او تک کنړی -
او وائِي چه هیڅوک دَ انسان نه نیک کیدَی نه شِي -
صرف یو حضرت عیسیٰ وه چه دَ گناه نه پاک وه -
او دَ دی عقیدی دَ سبورولو دَ پاره په کروړو کتابونه
زرگونه مدرسی - او هسپتالونه - اخبارونه جارِي
کړِی دِي - او په هر چل او فریب خلق خپل ځان
ته راآړوِي -
(۵) مسلمانان - دوه اویا فرقی شوی دی - په دو لئ
کښ هم لوئ لوئ ټولِی دادِي - حنفیان - اهل حدیث
شیعگان - او آزاد مسلمانان -
حنفیان - چه ځان ته سنیان وائِي - ایمان بی عمله
قائم کنړی - او دَ ایمان دَ پاره دَ عمل صالحه کول

ضرورِی نه گنړِی - دَ قرآن کریم په ترجمه لوستل
او په هغه باندِ ځان پوهه ول - احادیث لوستل ئې
ترک کړی دِی - قرآن کریم بی معنی لولِی - اودَ حدیث
په لاره هم نه تیریږِی - هرڅه چه ملا صاحبانِ
هغه خپله عقیده - او ایمان گنړِی - او دوئ ملایان
همیشه دا کوشش کوِي - چه مسلمانان کافران کړی
او اسلام دَ مسلمانانو نه پاک کړِي - دَ زیارت پرستئ
او دَ پیر پرستئ په گند کښ پراته دِي -

**اهل حدیث** - هغه خلق دِی چه ځان ته دَ
حدیث پیرو والِئ - او ځان دَ فقی دَ کتابونو نه آزاد
گنړی - اگر چه دوئ دَ زیارت پرستی او دَ شرک نه
تر یو حده پوری خلاص دِي - مگر والِئ چه دَ قرآن
او دَ حدیث جگړه راشِی - نو مونږ به دَ قرآن په ځائ
حدیث قبلوو - ځکه چه حدیث ورستی دَی - دا قوم
هم اکثر بد زبانه دِي - اماما نو - او اولیاؤ ته په سپک نظر گورِی

**شیعګان** - ځان دَ حضرت علی رض پیروان گنړِي
ځنی ئې خدائ بولِی - ځنی ئې رسول بولی - ځنی ئې



دَ حضرت رسول کریم صلی الله علیه وسلم - حقدار
جانشین گنړِی - او حضرت ابوبکر صدیق رض - حضرت عمر
فاروق رض - حضرت عثمان ذی النورین رض - او حضرت
عائشه صدیقه ته په سخت سپک نظر گورِی - او ځنی
پر لعنت والِئ - دا موجود قرآن کریم صحیح نه گنړی - بلکه
والِئ چه دی کښ لس سپاری حضرت عثمان رض کمی کړی
دِي - اکثر مونځ هم نه کوِي - دَ امامت دَ نما نځه دَ پاره
دا سی امام ضرورِی گنړی - چه دَ کربلا نه ورته سند
حاصل وِی - پنځه نمونځونه په درې ځائ هم کوِی - سنت
دَ نما نځه سره هرگز نه کوِی - هر کال دَ عاشورو په
ورځو کښ حسن رض او حسین رض ژاړِی - او دغه ژړا دَ نجات
او دَ شفاعت دَ پاره کافِی گنړِی - حضرت امام حسین رض
دَ ځان دَ پاره کفاره گنړی - گویا دا دَ مسلمانانو
عیسایان دِي -

**آزاد مسلمانان** - هغه خلق دِی چه ځان
مسلمان بولی - مگر دَ اسلام پابندِي ضرورِی نه گنړی
ځنی خدائ هم نه منِي - ځنی په اسلام کښ تغیر تبدل

کوي - ځنې دَ سود دَ نه خوړلو مخالف دِي - دَ عبادتو
نه ځان معاف ګڼي - خپل علت غائي دَ ژوندون
دنیا ګټل ګڼي - دَ دوزخ - دَ جنت - دَ قیامت - دَ فرښتو
او دَ الهام او دَ وحي نه منکر دِي - دا خلق زیات دَ
علیګړه تعلیم یافته دِي - او څه دَ نورو مدرسو تعلیم
یافته خلق دِي - دَ یورپ خشک فلسفې - او دَ ملایانو
بدعملي او کج خلقي دَ اسلام نه بیزاره کړي دِي -
دا هغه مصائب دِي چه په اسلام دَ بهر نه - او دَ
دننه راغلي دي - آریه - دهریه - هندوانو - او
نصارٰی وَ په اسلام دَ بهر نه حملې شروع کړې - او دَ
مسلمانانو دغه حال وه - هغه مسلمانان چه له
دین نه ناخبره وو - دَ مسلمانانو دی اندروني حالت
او دَ بهر بیروني حملو نه ډیر تنګ شو - نو لا چار څوک
دهریه شو - څوک آریه شو - څوک دَ نصارٰی وُ
ښکار شو دَ اسلام نه قریبًا په دوه پنځوس کاله کښ
دری څلور لکه خلق صرف په هندوستان کښ
دَ غیر مذهبو په زمره کښ داخل شو - او هغه څه



چه پاتې وو - هغه ملایانو کافران کړل - او دَ تکفیرو
فتوو بازار ګرم شه -

په دیارلسمه صدۍ کښ په ټوله دنیا کښ دَ
مسلمانانو حال خراب شه - او مسلمانان دَ دین دَ لارې نه
جدا شو - او په بد و رسمونو کښ پریوته - او دَ خدای
لاره ئې هیره کړه - او دَ دوئ دَ دنیا کارونه هم برباد شو
هرچرته چه دَ مسلمانانو بادشاهي وه هغه دَ نصارٰی
په لاس کیوته - لکه ټوله افریقه - مصر - طرابلس -
سوډان - یونان - دَ روم ریاستونه - کوه قاف - بلوچستان
ترکستان - دَ نصارٰی وُ شو - او دَ هندوستان نه دَ اسلام
دَ حکومت نخښه ورکه شوه - هغه وقت چه ملک دَ
سکانو په لاس کیوت - حلالی کول منع شوی - بانګ ویل
لمونځ ګذارل بند شو - بې دیني او بدکاري جاري شوه
په مسلمانانو کښ شرک قبر پرستي - دَ رسم رواج
تابعداري داخله شوه - او شریعت ورک شه - نو
په دا سې دَ هلاکت په وقت خدائ تعالیٰ دَ اسلام
دَ مدد دَ پاره یو خلیفه پیدا کړ - او دا آخري خلیفه

هم مهدی وه - او هم مسیح وه - چه په قادیان کښې ظاهر شه
دَ مصائب چه په اسلام دَ دننه او دَ بهرنه راغله - دا
ټول حضرت صاحب لیدل - او دَ هغه رحیم او کریم
وجود به دَ دی غمونو نه او په کیدلو - او لس کاله په
دی غمونو کښې سرنګون پروت وه - او دَ اسلام دَ دوباره
ترقی دَ پاره په دعاګانو سروه - لکه چه حضرت
صاحب یوه قصیده کښې فرمائی

دوه غمونو خما ژوند کړلو برهم
چه دښمن دَ اسلام زیات شر دوستان کم

غرض دا چه تر څلویښتو کالو (۱۲۹۰ھ) نمونځ وو - روژه
وه - دَ خدائ یاد وو - دَ قرآن کریم لوسته وو -
او دَ نورو مذهبونو کتابونه کتل وو - او شپه او ورځ
دَ اسلام دَ ترقئ دَ پاره دعاوی - آخر کار دَ هغه پاک خدائ
چه دَ حضرت آدم نه تر حضرت رسول الله صلی الله
علیه وسلم پوری به په هره زمانه کښې دَ هر یو نبی او دَ
رسول سره کلام کاوه - او هغه لوئ ذات چه دَ
لوئ خوان شیخ احمد سرهندی - شاه ولی الله دهلوی



او زرګونو بزرګانو سره به کلام کاوه - هغه خدائ
ده سره کلام کول شروع کړه - دا کلام دَ خدائ په ذریعه
دَ وحی او دا الهام وه - مګر نه هغه وحی چه دَ قرآن کریم
ده - بلکه هغه وحي - او الهام چه دَ رسول الله صلی
الله علیه وسلم په فیض او برکت هر لوئ بزرګ ته
حاصلیږي - دی وحی یا الهام سره جبرائیل نه وي
لکه چه دَ حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم وحی
سره به نازلیده - په سنه دولس سوه نوی (۱۲۹۰) هجري کښې
په ده الهام شروع شه —

## مامورکیدل

دَ حضرت صاحب چه عمر دَ څلویښتو کالو شه (سنه ۱۳۹۱ھ)
نو الله تعالی ور سره کلام شروع کړه - اول الهام ورته
دَ والد صاحب دَ وفات دَ خبر وشه چه - وَالسَّمَآءِ وَالطَّارِقِ
حضرت صاحب دَ پلار په وفات فکرمند شه - نو بل
الهام ورته دَ تسلي دَ پاره وشه چه - اَلَیْسَ اللّٰهُ بِکَافٍ
عَبْدَہٗ (چه خدائ تعالی الله دَ خپل بنده دَ پاره دیر
کافی دی) دَ حضرت صاحب دیره تسلی وشوه - او

دا الهام ئ په یو مهر کښ وکنوده - او هم دا مهر به دَ
حضرت صاحب په لاس وه - لس کاله نور حضرت
صاحب دَ اسلام په فکر کښ - او دَ هغه دَ ترقئ دَ پاره
دعاؤنه وکړه - او دَ غیر مذهبو نو کتابونه ئ مطالعه
کړه - او شپه ورځ دَ اسلام په غم کښ ئ ځان سرگردانه
کړ - تر دی حده پوری چه دیارلسمه صدئ پوره شوه
او دَ څوارلسمی صدئ سر شروع شه - نو الله تعالیٰ چونکه
دَ زړو نو خاوند دی - او د هغه دَ رحمت نزول په هغه
کس کیږي - چه معصوم وِي - پاک وی - دَ خدائ تابعدار
بنده وِی - دَ اسلام رښتینی خادم وِي - دَ حضرت
رسول الله صلی الله علیه وسلم رښتینی محبت لرِي - او
صادق پیرو وِي - او دَ اسلام په درد دردمند وِي
نو دَ دی قانون په تقاضا سره په کل اسلام کښ صرف
هم دا یو انسان داسی وه - چه دَ اسلام دَ خدمت دَ
پاره الله تعالی مناسب وگڼلو - نو مبعوث ئ کړلو
او یه دا رنگ ئ مخاطب کړ -
**چه ته د دی صدیٔ مجدد ئ - او بیا**



دا الهام وشه - اَلرَّحۡمٰنُ عَلَّمَ الۡقُرۡاٰنَ - لِتُنۡذِرَ قَوۡمًا
مَّاۤ اُنۡذِرَ اٰبَآؤُهُمۡ - وَلِتَسۡتَبِيۡنَ سَبِيۡلُ الۡمُجۡرِمِيۡنَ ۝ قُلۡ
اِنِّیۡۤ اُمِرۡتُ وَاَنَا اَوَّلُ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ۝ ترجمه - الله تعالی چه
رحمان دی - دَ خپل رحمانیت په سبب ئ تا له دَ قرآن
کریم علم در عطا کړ - چه ته دَ قرآن کریم په ذریعه
خلق دَ هغوئ دَ بد انجام نه وویروی - هغه خلق چه
په سبب دَ ډیره سخته غفلته په گمراهئ کښ پریوتلی دِي
او هغوئ دَ هغو غلطونه خبردار کړی - دَ پاره دَ دی
چه هغه کسان چه څه مجرمان دِي - چه هغوی دَ مؤمنانو
نه جدا شِي - او هغوئ ته خپل جرمونه او گناهونه
معلوم شِي - او ورته ووایه چه زه مامور من الله
شوم - او اول المؤمنین یم - یعنی دَ خدائ په حکم
وئیږم - او هر چه وائ زه پخپله اول ایمان لرم -
حضرت صاحب دَ اسلام او دَ نبوت محمدیه او دقران
په صداقت کښ یو عظیم الشان کتاب براهین احمدیه
په حکم الهي سره ولیکلو - او اشتهار دئ ورکړ - چه دَ
کل جهان خلق دِ دَ دی کتاب دلائل رد کړی - او

که نه شي د دکولی نو د خپل دین په تائید کښ د ددی
قسم دلائل دومره یاد دی په دریمه حصه پیش کړي
نو له ما نه د لس زره روپئ انعام واخلي - او څما دعوی
ده چه نه دا دلائل څوک رد کولی شي - او نه څوک د دی
قسم دلائل د خپل مذهب په صداقت پیش کولی شي -

**دا کتاب** عام مشهور شه - او په کل هندوستان بلکه
مصر کښ هم بې نظیره تسلیم شه - هیڅوک ئې په ځواب
باندې قادر نه شه - او خلقو د حضرت مجدد توب هر ځائ
تسلیم کړ - او په ډیر اخلاص سره ئې د دی کتاب
تائید او صفت وکړ -

## الله تعالی ورسره وعده وکړه

(۱) اِنِّیْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا ۔ ما د کل بني آدم د
پاره امام مقرر کړی -
(۲) اِنَّكَ مِنَ الْمَنْصُوْرِیْنَ ۔ تاله به مدد ورکړی شي -
(۳) اِنِّیْ نَاصِرُكَ وَاِنِّیْ حَافِظُكَ - زه ستا مدد کوم
او زه ستا حفاظت به کوم -
(۴) اَلَا اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغَالِبُوْنَ ۔ ای خلقو



خبردار شئ - د خدای جماعت به په ټولو غالب شي
(۵) وَاللّٰهُ یَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ - الله تعالی به تا د خلقو
د حملو نه - او د شر نه محفوظ ساتي - او نه ستا په مرګ
به قادر شي -
(۶) اِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِیْنًا ۔ زه به تاله په هر ځای کښ
روښانه فتح ورکوم - داسې فتح چه دښمن به پرې قائل وي
(۷) نُمَزِّقُ الْاَعْدَآءَ کُلَّ مُمَزَّقٍ وَمَکْرُ اُولٰٓئِكَ هُوَ یَبُوْرُ ۔
موږ به ستا دښمنان ټکړې ټکړې کړو - او د هغو هر
مکر او تدبیر به عبث کړم -
(۸) اِنِّیْ مُعِیْنٌ مَنْ اَرَادَ اِعَانَتَكَ - وَاِنِّیْ مُهِیْنٌ مَنْ
اَرَادَ اِهَانَتَكَ - زه د هغو کسانو مدد کاریم - چه
څوک ستا مدد کاروي - او زه د هغو کسانو به ذلت
کوم او رسوائي کوم چه ستا د اهانت او د رسوائي خیال لري سپکوالی
(۹) یَاْتِیْكَ مِنْ کُلِّ فَجٍّ عَمِیْقٍ - یَاْتُوْنَ مِنْ کُلِّ
فَجٍّ عَمِیْقٍ - د هر ځای خلق به تاله راشي - او د هر
ملک نه به در له تحفې او پیشکشونه راشي - دومره
خلق به راشي چه په سړکونو کښ به لارې جوړې شي

(۱) شتا عمر به اتیا کالو ته قریب شي- څه کم یا څه زیات له تا نه به لوئ نسل روان شي-

دا او د دی قسم نوری وعدی په ډیر کثرت سره دي- چه الله تعالیٰ حضرت صاحب سره کړی دي- او حضرت صاحب ته وویلی شو چه (۱) تا له دَ قرآن کریم علم درکړی شه- او په دارنګ علم په روئ زمین کښ چا له نه دی ورکړی شوی- (۲) ستا دَ دښمن په مقابله کښ قبوله او مقبوله ده- تا ته دَ مباهلی اجازت دی- (۳) تا له دَ عربي هغه علم درکړی شوی دی- چه عرب او عجم کل به ستا په مقابله کښ عاجز شي-

## مسیح موعود او مهدي آخر زمان کیدل

هغه وقت چه پنځه کاله نو دَ څوارلسمی صدۍ دَ سر نه تیر شو (۱۳۰۵ھ) نو الله تعالیٰ ورته خطاب وکړ چه هغه حضرت عیسیٰ علیه السلام چه څوئ دَ حضرت مریم وه او پس له حضرت موسیٰ علیه السلام نه دَ توریة دَ شریعت دَ خدمت دَ پاره په څوارلسمی صدۍ کښ راغلی وه



او دَ موسوی سلسلی دیارلسم خلیفه او مجدد وه- وفات شوی دَی- او هغه مسیح موعود چه دویم نوم ئی امام مهدي- آخر زمان دی- او پس دَ حضرت محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ قران دَ شریعت او دَ اسلام دَ خدمت دَ پاره په څوارلسمی صدي کښ راتلونکی وه- او دَ محمدی سلسلی دیارلسم خلیفه او مجدد وه- هغه ما ته مقرر کړی- پاسه په دنیا کښ اعلان وکړه زه به له تا سره یم- او ستا مدد به کوم-

## دَ حضرت اعلان

حضرت صاحب په موجب دَ دی حکم اعلان وکړ- او دَ دنیا لوئ لوئ بادشاهان- او امیران- او نولبان ئی په دارنګ مخاطب کړه- چه- ای دَ روئ زمین او سیدونکو زه دَ الله تعالیٰ له جانب نه په دی صدۍ مجدد مقرر شوم- او په موجب دَ حدیث لا مهدی الا عیسیٰ- چه کتاب ابن ماجه کښ موجود دی- زه هغه مهدي آخر زمان یم چه دویم نوم ئی مسیح موعود دَی- او تاسو تولو ته دادر خواست دَی- هغه الله چه یو دَی- او نه

شریک لرِي - او نه اولاد - هغه صرف دَ عبادت لائق دی
هم هغه دَ کل جهان خالق دی - رازق دَی - پروردګار
دَی - دَ هغه هم رسولان رښتیني وو - او دَ هغه کتابونه
چه دَ خلقو دَ هدایت دَ پاره نازل شوی حق دی - او سید
الرسل وخاتم النبیین حضرت سیدنا محمد صلی الله علیه
علیه و سلم دَ هغه رسول دی - او ټول کمالات - او مدارج
دَ نبوت په هغه باندِ ختم دِي پس دَ هغه نه بل نبِي او
رسول نشته - او حضرت عیسیٰ علیه السلام چه نصارئ
ئې دَ الله تعالی ځوئ ګنړِي - هغه وفات شوی دَی - او
مړ دی - اوس دَ کل جهان دَ پاره یو دین مقرر دی - چه
اسلام دی - او یو رهنما دی چه محمّد دی - او یو شریعت
دی چه قرآن دی - او جامع او مکمل کتاب دی - هغه
څه چه دَ هدایت دَ پاره ضرور وو - هغه په کښ موجود
دِي - زه دَ اسلام دَ خدمت دَ پاره مبعوث شوی یم - او
هغه ځوک چه دَ حق تلاش او لټون کوِي - ماله دِ را دروځي
ماسره دَ روح القدس مدد دَی - او زه دَ کل جهان دَ
پاره امام مقرر یم - ما کښ دَ اسلام ژوندہ نښی موجود دي



دَ هر قسم تسلی چه غواړِي ماله شئِ - زه دَ خلقو دَ
تسلی کولو دَ پاره راغلی یم - ای محرومو خلقو زر راځئِ
چه دَ ژوند څه اعتبار نشته - ما تاسو ته اعلان وکړ
او خبردار کړِئ - چه زه موجود یم - اوس که تلاش
نه کوِئ - نو دا ستاسو سستیا ده - والسلام

## دَ ملایانو غوغا

دا اعلان دَ یورپ - دَ امریکی بادشاهانو ته - دَ
روم سلطان ته - دَ ایران بادشاه ته - دَ مصر خدیو ته
دَ افغانستان امیر ته ور رسیده - او دَ هندوستان
نوابانو - امیرانو ته ور ولیږلی شه - ملایان - او
مولویان خبردار کړی شو - دَ پنجاب مولویان - او
ملایان په غضب شو - چه دا نو حضرت غلام احمد ته
ولی عطا شه - دَ ډیره حسده او دَ بعض په فتوو دَ
کفر شروع شو - او یو کس مولوی محمد حسین صاحب
دَ بټالی پاڅید - او دَ اګری او دَ بمبئِ نه تر پښاوره
پوری ئې دَ ملایانو نه فتویٰ واخستي - او په حضرت
صاحب ئې دَ کفر فتوی ورکړه - او هغوی چه څومره

عقیده ده چه حضرت عیسی علیه السلام ژوندی په
دی جسم سره په آسمان کښ موجود دی - او آخره
زمانه کښ به په دَ مشق کښ نازلیږی - او امام مهدي
آخرزمان به ورنبی هلته موجود وي - هغه به کفار
قتل کوی - او خلق به په زوره مسلمانوي - او هغه
خوک چه دا عقیده نه لري - هغه کافر دی - او هغه خوک
چه دَ حضرت غلام احمد تابعدار شي هغه هم کافر شي
په دی فتوی ئی خلق دَ حضرت صاحب نه وترهول - او
او وویرول - او ځائ په ځائ ئی وعظونه او حکمونه
برخلاف دَ هغه شروع کړل - او خلق ئی منع کړه - مګر
هغه نور چه الله تعالی روښانه کړی - کله د بل چا په
پوکو مري - او هغه نور چه په آسمان وُخیژي هغه
کله دَ خلقو په ګرد وغبار پټیږي - دَ الله تعالی وعده
ده چه زه به دِ مدد کوم - او خلق به تا ته رجوع کوي
دا ضرور پوره کیدونکی ده -

## دَ حضرت صاحب تبلیغ

حضرت صاحب علی ګړه ته سفر وکړ - او هلته ئی خلقو ته



په هندوستان کښ وعظ او اعلان وکړ - دهلي یا دیلي
ته لاړ - دا ځائ هم دَ هندوستان ډیره قدیمی دار
الخلافه ده - حضرت صاحب دَ خپل ماموریتیا اعلان
وکړ - ملایانو سره ئی بحثونه وکړه - جامع مسجد دَ
دهلي کښ ئی خپله عقیده بیان کړه - دا ذکر ځمونږ کتاب
عقائد احمدیه کښ چه په پښتو کښ دی - موجود دَ ی
حضرت صاحب ښهر په ښهر وګرزیدلو - او ځائ په
ځائ وعظونه ئی وکړه - ډیر کتابونه ئی تحریر کړل - دَ ملایانو
خوابونه ئی په دا رنګ سره وکړه - چه بیا دَ هغوطاقت
یا نه شه چه جواب ورکړی - دَ حضرت عیسی علیه
السلام وفات ئی په ښه شان سره ثابت کړ - لکه چه څه
قدر دَ هغه دَ وفات احوال ځمونږ وفات المسیح کښ په پښتو
ژبه هم موجود دی - یاجوج ماجوج ئی دا دیورپ قومونه
ثابت کړه - لکه چه ځمونږ کتاب خروج یاجوج ماجوج کښ
په پښتو ژبه درج دي - الدجال ئی دَ نصاری وپادریان
ثابت کړه - وګوري ځمونږ کتاب خروج الدجال په پښتو
ژبه کښ - په لکونو خلقو دا کتابونه ولوستل - او په تول

جهان کښې ښواره شو- دَ علماؤ به دَ خواب نه کوم نکه شوه
او دَ ملايانو قلم دَ دليل نه عاجز شه-

## دَ خلقو رجوع

حضرت صاحب دَ بيعت اعلان وکړ- او دَ لُدِهَانې ښهر
ته ئې تشريف راوړ- لوئ لوئ علما او صوفيان- او خلق
ور روان شو- او بيعت ئې تړو کړ- او دَ هغه په ذيل دَ
مريدانو کښې شامل شو- هغه لس شرطونه چه حضرت
صاحب دَ بيعت دَ پاره مقرر کړی دِی- هغه دا دِي-

## لس شرطونه دَ بيعت

(۱) هغه څوک چه څما بيعت کوِي- دَ زړه دَ اخلاص
دِ دا اقرار وکړِي- چه تر څو ژوندی وِی- نو دَ شرک
نه به ځان ساتِي-

(۲) دروغ به نه وائِي زنا به نه کوِي- په بد نظر به
چا ته نه گورِی- دَ ظلم- او دَ فسق- او دَ گناه- او دَ خيانت
او دَ فساد- او دَ بغاوت نه به په هر شان بچ گرځِي- او
نفسانِي جوش به په ځان نه غالِب وی- اگر که دغه جذبه
څومره سخته وِي-



(۳) هميشه به پنځه وقت مونځ په هغه شان سره چه
دَ خدائ تعالی او دَ حضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم
حکم دی ادا کوِي- او څو چه ئې وس کيږِي دَ تهجد مونځ
به کوِی- او په حضرت محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم
درود وائِي- او هره ورځ به دَ خپلو گناهونو معافِی غوارِي
او استغفار به وائِي- او دَ زړه دَ محبته به دَ خدائ تعالی
احسانونه يادوِي- او دَ هغه په ثنا او په حمد کښې
به هره ورځ لگيا وِي-

(۴) عام مخلوق دَ خدائ ته به عموماً او مسلمانانو ته به
خصوصاً دَ خپل نفس دَ جوش به دَ هيځ قسم ناجائز تکليف
نه رسوِي- نه په خپله ژبه- نه په خپل لاس- او
نه په بله طريقه-

(۵) په هر کار کښې که دنځ وِی- او که راحت وِي- که
تنگسيه وِي که خوشحالِي وِي- که په نعمت کښې وِی او
که په مصيبت کښې وِي دَ خدائ تعالی سره به وفادار
وِی- او په هر حالت کښې به رضا وِي- په حکم دَ خدائ تعالی
او دَ هغه په لاره کښې هر قسم بی عزتی او تکليف به قبولوته

تیاروِي - اوکه څه مصیبت پرِ راغي - نو مخ به نه گرځوِي
بلکه قدم به وړاندِ بېدِي -
(٦) دَ رسمونو اودَ خپلي هُوهَوادَ تابعداري نه توبه
کاروِي - اودَ قرآن کریم پوره حکومت به په سرسترگو
قبلوِی - اوقال الله - اوقال الرسول به په هرامر کښ
دَده دستورالعمل وِي -
(٧) تکبر ځان ته خوبش والی به بالکل پرېښي دي - او
په عاجزي - او په مسکینی - او په خوش خلقی - او په
نرم مزاجی به ژوندون تېروِی -
(٨) دَ دین عزت او دَ اسلام هدردِی به دَ خپل ځان
دَ خپل مال - دَ خپل عزت - اود خپل اولاد - او دَ خپل
هرخوږ نه به زیات خوږ گڼږي -
(٩) دَ خدائ تعالیٰ دَ عام مخلوق په هدردیٔ کښ به
محض دَ خدائ دَپاره لگیاوِي - حتی الوسع خپل همجنسو ته
به دَ خدای ورکړِی نعمتونو نه او دَ طاقتونو نه فائده رسوِي -
(١٠) دی عاجز (یعنی غلام احمد علیه السلام) سره به دَ
ورودوالي اقرار صرف دَ خدائ تعالی دَپاره کوِي - په



باب دَ تابعداري کولو دَ هغو خبرو کښ چه مخالف دَ قرآن
نه وِي - او ترمرگ پوری به پرِ قایم وِي - او په دی اقرار
دَ ورود ولیٔ کښ به داسی دَ اعلی درجی وِی چه دَ
هغی مثال به هَدنیاوِی خپلوی او دَوستي په تعلقاتو
کښ نه وِی - او نه به نوو تولو خادمانه حالتونو کښ وِی -
هغه چا چه دا شرطونه به ومنل نو حضرت صاحب
به له هغه نه په داشان بیعت اخستلو چه حضرت
صاحب به له نمانځه نه مخ خلقو ته را واړاوه - او هغه
کس چه بیعت به ئی کاوه - هغه به دَ حضرت صاحب په
لاس کښ خپل لاس ورکړ - اوکه چری ډیر به وو نو نورو
به دَ حضرت صاحب دَ لاس دَپاسه لاسونه کیښودل -
نو حضرت صاحب به دا الفاظ ویل - او هغو بیعت کونکو
به ادا کول چه - اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْکَ
لَهٗ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ - دوه ځله به
دا کلمه ویلی شوه - او بیا به ئی وِچه زه نن دَ احمد په لاس
دَ هغه ټولو گناهونو نه توبه کوم - چه زه په کښ
گرفتار وم - او دَ زړه دَ اخلاصه اقرار کوم چه څومره پوری

چه زه طاقت او پوهه لرم - دَ دی ټولو ګناهونو نه به
خلاص شم - او دین به په دنیا باندِ مقدم کړم -
اَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ رَبِّیْ مِنْ کُلِّ ذَنْبٍ وَّ اَتُوْبُ اِلَیْهِ + دوه
ځله - یعنی دا چه ای ځما خدایه زه له تا نه پناه غواړم
دَ خپلی هری کمزورتیا نه و تا و ته رجوع کوم - بیا به ئی
وی - رَبِّ اِنِّیْ ظَلَمْتُ نَفْسِیْ وَاعْتَرَفْتُ بِذَنْبِیْ فَاغْفِرْلِیْ
ذُنُوْبِیْ فَاِنَّهٗ لَا یَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ - یعنی ای ځما ربه
ما خپل ځان باندِ ظلم کړی دی - او دَ خپلو ګناهونو
اقرار کوم - ځما ګناهونه وبخښی - ځکه چه بی له تا نه
بل څوک دَ ګناهونو بخونکی نشته - پس له دی نه به حضرت
صاحب او هغه څوک چه موجود به وو - دَ بیعت کونکی
دپاره - او دَ هغه دَ خپلوانو دپاره به دَعا غوښته -
هغه وقت چه دا تبلیغ بشپړ شه - نو دَ عربی شام
روم - دَ مصر - دَ برما - دَ هندوستان - دَ دکن - دَ
بلوچستان - دَ فارس - دَ بغداد - دَ افغانستان - دَ
کشمیر - دَ یاغستان - دَ سرحد نه خلق ورمات شو
او سره دَ دی ټولو مخالفتونو چه ملایانو او علماؤ کاوه



خلقو ورته په ډیر زور رجوع وکړه - او دَ هغه په مبارک
لاس ئی دَ دوئ لسو شرطونو په موجب بیعت وکړه -
ډیری تحفی ورله دَ لری لری ملکونو نه راغلی - او ډیر
مال ورته پیش کړی شه - هره ورځ دَ خلقو رجوع
زیاتیدله - او خلقو دا فیض قبلوه - او دَ هغه په پاک
صحبت کښ دَ اصحابانو نمونه شو - او دَ سره دَ مال
دَ عزت - دَ اولاد نه ورته تیر شو - او دَ هغه دَ مدد
او نصرت ئی له خپل علمه - دَ مال دَ کوشش نه وکړه

## سفرونه

(۱) ملتان ته حضرت تشریف یووړ - او هلته ئی په
اسلامیه مدرسه کښ وعظ وکړ - او زرګونه خلق دَ
هغه علاقی جمع شوی وو - او هغوئ ته ئی خپله دعوی
واوروله - او ډیر خلق دَ هغه علاقی ئی په بیعت
کښ داخل شو - او دَ ډیرو زړونه ورته متوجه شو -
(۲) لدهانی ته ئی تشریف یووړ - او وعظ ئی وکړ - زرګونه
خلق جمع شوی وو - او هغه وعظ پرِ دومره اثر وکړ
چه ډیر کسانو تر دَ حضرت په بیعت کښ ځان داخل کړ -

(۳) لاهور کښې ئې یو ځل په ستمبر سنه ۱۹۰۴ع اس دولس ورځې
مقام وکړ - اشتهار ئې ورکړ چه زه به دَ اسلام په باب کښې
په فلانکي تاریخ وعظ کوم - دَ پنجاب خلقو چه دا اشتهار
ولوست - په ډیر شوق سره دَ لرې لرې نه راجمع شو - او
ملایانو ډیر سخت کوشش وکړ چه هیڅوک دا نه شي - او
دا وعظ وا نه وري - او په لارو کوڅو سړکونو کښې ودریدل
او بر خلاف وعظ ئې شروع کړ - مګر بیا هم دَ حضرت دَ
وعظ په وقت دَ پنجاب دَ لرې لرې مقامونو نه قریبًا
سپارس زره خلق جمع شو - دا وعظ ئې واورید - او
ډیرو کسو دَ حضرت بیعت وکړ -

(۴) ګورداسپور ته په دوران دَ یوې مقدمې کښې چه
کرم دین نومي یو مخالف پرِ جوړه کړې وه - حضرت
صاحب دَ ګورداسپور خلقو ته ډیر ځله وعظ وکړ -
او دَ هغه علاقې عالم ئې په مریدانو کښې داخل شو -

(۵) په سنه ۱۹۰۴ع دَ نومبر په میاشت کښې سیالکوټ
ته یو ځل بیا لاړل هلته هم ملایانو سخت کوشش
دَ دې امر وکړ چه جلسه ونه شي - مګر آخر جلسه په



په ډیره کامیابۍ سره وشوه - او حضرت صاحب بیا دَ
اسلام په خوبو وعظ وکړ - او ډیر خلق ئې مریدان شول
او دَ ډیرو خلقو ته ورته خیال نیک پیدا شه - په دې
وعظ کښې حضرت صاحب دا هم اعلان وکړ - چه زه صرف
دَ مسلمانانو دَ پاره مَهدِي آخر زمان یم - او دَ نصارئ
دَ هدایت دَ پاره مسیح موعود یم - بلکه دَ هندوانو دَ
هدایت دَ پاره هم مقرر یم - او دَ هغو دَ پاره زه کرشن
ثاني یم - چه دَ هغو پیغمبر وه -

په سیالکوټ کښې حضرت صاحب دَ ځوانۍ په وقت
ډیر عمر تیر کړې وه - نو هغه خلق دَ حضرت صاحب
دَ حالاتو نه ډیر ښه واقف او خبردار وو - ځکه دَ دوئ
دَ دعوې په وقت کښې پرِ دَ سیالکوټ خلقو ډیر زیات ایمان
راوړ -

(۶) دَ کرم دین دَ مقدماتو په دوران کښې حضرت
صاحب یو ځل جهلم ته هم تشریف راوړ - دا وقت
جنوري سنه ۱۹۰۳ع وه - په دوه درې وعظونو کښې
دولس سوه خلق په بیعت کښې دَ هغه او دَ نورو ضلعو

داخل شو۔

(۷) حضرت صاحب دِهلي ته بیا په سنه ۱۹۰۵ء تشریف
یووړ۔ او بیائی وعظ وکړ۔ او دَ خلقو ډیره رجوع وشوه
(۸) پټیالی ته حضرت صاحب تشریف یووړ۔ او وعظئی
وکړ۔ او خلق ئی په بیعت کښ داخل شو۔ او په دغه
ریاست کښ ډیر زیات مریدان پیدا شو۔

(۹) حضرت صاحب دَ دهلي نه چه قادیان ته واپس
کیده۔ نو امبرسر کښ هم کوز شه۔ او وعظئی وکړ۔ او دا
دَ رمضان میاشت وه۔ حضرت صاحب عین په دوران
دَ وعظ کښ اوبه وغوښتلی۔ او خلقو ته ئی دا ښوده وښوله
چه په مسافر روژه نشته۔ او بیا چه په مقام شي۔ نو
روژه دِ ونیسي۔ مګر خلقو ډیر بد وګڼړل۔ او دَ کاڼړو
او دَ لوټو ئی په حضرت باران جوړ کړ۔ مګر سره دَ دی
هم ډیر خلق ئی په بیعت کښ داخل شو۔

(۱۰) حضرت صاحب دَ وفات په زمانه کښ یعنی اپریل
او مئي سنه ۱۹۰۸ء کښ بیا لاهور ته تشریف راوړ۔ او پوره
یوه میاشت دَدی امر دَ پاره ئی قیام وکړ چه خلقو ته دَ



اسلام خو بئ خپله دعوی په ښه شان سره واوروی
او دَ هندوانو او دَ مسلمانانو دَ صلح دَ پاره کوشش ئی
وکړ۔ او پیغام صلح نومی کتاب ئی تحریر کړ۔ یوه میاشت
هلته مقیم وه۔ او لوئ لوئ رئیسان هندوان۔ او
مسلمانان راغله۔ او دَ حضرت صاحب وعظ ئے
واورید۔ او بی حسابه خلقو بیعت وکړ۔ هم په دی
آخر کښ حضرت صاحب ناجوړه شه او وفات شه۔

## مباحثی

حضرت صاحب دَ مباحثو دَ پاره هم بعض سفرونه
پخپله وکړه۔ او چرته ئی په جلسو کښ خپل تحریری
وعظ ولیږلو۔ زه د دی امر هم څه قدر ذکر کوم۔

(۱) اول بحث مولوي محمد بشیر صاحب سره په
دهلی کښ وشه۔ او هلته مولوی محمد بشیر صاحب
دَ حضرت عیسیٰ ژوند ثابت نه کړی شه۔ (۲)
مولوی محمد حسین صاحب سره په لدهیانه کښ ئی بحث
وکړ۔ مګر حیات دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام ئی ثابت
نه کړی شه۔ (۳) امبرسر کښ دَ مولوي عبد الحق صاحب

غزنوی سره لئ بحث وکړ- آخرکار چه مولوی عبدالحق لاچاره شه- نو مباهله ئې وکړه (بددعا- ښیری) چه الٰهی هغه کس چه دروغژن او مخالف دَاسلام وِی هغه دِ رسوا شِي- او تباه شِي- او ذلیل شِي- پس دَدی مباهلی نه هم حضرت صاحب چه کومه ترقی وکړه هغه معلومه ده- (۴) په امبرسر کښ دَ عیسایانو سره لئ بحث وکړ- پنځلس ورځی دا بحث وه- عیسایان دَحضرت عیسی دَ خدائ- دَ ژوندون- دَ کفاری دَ ثابتولو نه عاجز شو- او آخر دا بحث هم په مباهله ختم شه- او پادرِي عبدالله آتهم دَدی مباهلی ښکار شه- یعنی مړ شه-

(۵) په دسمبر ۱۸۹۶ء کښ یوه لویه جلسه دَدی امر په باب کښ تجویز شوی وه- چه کوم مذهب حق دَی- حضرت صاحب دَ اسلام په باب کښ لیکلی وو هر څوائ یوه میاشت اول دا اشتهار ورکړی وه- چه زه به په دی جلسه کښ کامیاب شم- او هغه وقت چه جلسه وشوه- او دَ حضرت صاحب مضمون دَ



وعظ وا اورید لی شه- نو ټولو خلقو په اتفاق سره ووی- چه دا میدان حضرت غلام احمد فتح کړ- هغه نصرت او امداد چه الله تعالی ورله مقرر کړی وه دَ حضرت صاحب په هر وقت- او په هر ځائ کښ وشه او دَ خلقو زړونه حضرت صاحب ته راجع شو-

## کامیابِی

(۱) حضرت صاحب ډیر کتابونه په عربِی ژبه کښ تحریر کړل- او ډیر ډیر انعام ئې مقرر کړ- چه دَدی ځواب دِ څوک په عربی کښ وکړِی- مګر نه عرب نه عجم هیڅوک هم مقابل نه شو- (۲) دَ حضرت صاحب په مباهلو کښ ډیر خلق تباه شه- او هلاک شه (۳) هغه چا چه دَ حضرت صاحب رسوائِی غوښته- پخپله رسوا او شرمنده شه دَ هر قوم نه خلق دَ هغه په پیشنګویو سره هلاک شو (۱) دَ نصارٰی ئو نه پادرِی عبدالله آتهم- پادرِي عمادُالدین- مستر پکټ دَ لندن- او ډاکټر ډوی دَ امریکی-

(۲) دَ هندوانو نه اندرمن مراد آبادِي- پنډت دیانند

سرسوتی - او پنډت لیکرام دَ پښاور -
(۳) دَ مسلمانانو نه - الٰهی بخش صاحب دَ لاهور - چراغِ
الدین دَ جمون - فقیر مرزا دَ دوالیان - مولوے
عبد الرحمن صاحب دَ لکوکی -

دا قسم نور دوه درې سوه خلق دِی - په مباهله کښ
هلاک شو - او دَ دوی مړګونو په عوامو خلقو ډیر اثر وشه -

دَ حضرت صاحب ډیرو لویو لویو خلقو تصدیق په
ذریعه دَ خپل کشف دَ الهام وکړ - لکه (۱) حضرت
پیر صاحب العلم صاحب دَ سنده - (۲) حضرت شیخ
غلام فرید صاحب دَ چاچړانو شریف - (۳) حضرت
پیر سراج الحق صاحب دَ سرساوی (۴) حضرت احمد
جان صاحب صوفیِ دَ لدهیانی - (۵) حضرت صاحبزاده
عبد اللطیف صاحب شهید دَ خوست -

داکسان پخپله دَ ذرګونو مریدانو خاوندان وو - او
صاحبِ دَ علم او دَ تقوٰی وو - دَ حضرت صاحبؑ دَ مرګ دَ پاره
خلقو ډیر ډیر تجویزونه وکړه - مګر باطل شو - او حضرت
صاحب الله تعالی په موجب دَ خپلی وعدی بچ کړ



او آخرکار دا چه په خپل مرګ وفات شه -
ډیری خطرناکی مقدمی په هغه مسلمانانو - آریه ګانو
عیسایانو - جوړی کړی - مګر الله تعالی حضرت صاحب
کامیابه کړ - او دغه خلق نامراده شو -

## یادګار

حضرت صاحب په قادیان کښ یوه مدرسه بناکړه تر
لسو جماعتونو پوری - په کښ مروجه تعلیم دَ پنجاب
یونیورسټی - او قرآن کریم سره دَ ترجمی ویلی شی -
دَ هغی نوم مدرسه تعلیم الاسلام دی -
ډیر هلکان څمونږ دَ سرحد او دَ پنجاب دَ ښهرونو په کښ
علم زده کوی -

یوه ماهواری رساله په انګریزی ژبه کښ - او یوه
ماهواری رساله په اردو ژبه کښ جاری کړه - او دَ
هغی په ذریعه دَ اسلام دَ قرآن کریم - او دَ حضرت
فضائل او خوبئ یورپ آمریکی ته په انګریزی کښ
او هندوستان ته په اردو کښ رسیږی - او هغه
اعتراضونه چه پادریانو په اسلام او په قرآن کړیدی

دَهغوجوابونه په کښ چاپ کيږي - او يولوی خدمت
دَاسلام په دی ذريعه جاری دی - قريبًا اتيا
کتابونه حضرت صاحب ليکلي دي -

(۱) څه دَ نصاریٰ وُ په جواب کښ دِي - چه حضرت
عيسیٰ عليه السلام نه خدای وه - او نه دَ خدا ئے
ځوی وه - هغه کفاره شوی نه دَی - بلکه په خپل
مرګ کشمير کښ مړ دی - او دَ هغودَ اعتراضونو جواب
ئے په ښه شان سره کړی دی -

(۲) څه دَ آريه ګانو په رد کښ کړی دِي - چه دَ کل عالم
خالق خدای دَی - روح او ماده قديم نه دِي - الهام
تل کيږی - په ويد ختم نه دی - تناسخ باطل دی
نجات نهٔ دائمي دِی - او دَ هغودَ اعتراضونو ئے په
ډير ښه شان سره جواب ورکړی دی - اوَ ډيوک په
رسم ئے شرمنده کړی دی -

(۳) دَ ديو سماج ځواب ئے کړی دی - او دَ الله تعالی
هستئ ئے ثابته کړی ده - او قيامت او سزا جزا
ئے ثابت کړی دَی -



(۴) څه دَ سِکانو په رد کښ دِي - او حضرت بابا نانک
رحمة الله عليه ئے ثابت کړی دَی - چه يو مسلمان ولی
وه - او هغه نمونځ به هم کولو - روژه به ئے هم نيوله
حج له هم تلی وه - بغداد - او بخارا ته هم تلی وه هغه
يو قميص به آغوستلو چه ټول پر قرآن کريم ليکلی دے -
او ډيره بابا نانک نومی کلی کښ موجود دی - او قرآن کريم
به ئے لوستلو -

(۵) څنی دَ نيچريانو يادَ آزاد مسلمانانو په رد کښ
دِي - او حضرت صاحب دَ فرښتو - دَ جن - دَ معجزات
دَ قيامت - دَ الهام - دَ نبوت ثبوت په کښ کړی دی -
او دا چه دعا قبليږي - او ذريعه دَ حصول دَ مطلب ده

(۶) څه دَ وهابيانو په رد کښ دِي - او دا عقيده ئے رد
کړی ده چه حديث له په قرآن ترجيح ورکوِي - حضرت
صاحب وائِي چه قرآن کريم په حديث باندِ ترجيح لرِي -

(۷) دَ شيعګانو په رد کښ ئے ليکلِی دِی - او ثابت کړی ئے
دی - چه خلافت لکه چه واقع شه هم هغه سی حق
دی - يعنی حضرت ابوبکر صديق رضه خليفه اول او برحق

خلیفه دی - بیا حضرت عمر فاروق رض خلیفه ثانی - او
برحق خلیفه دی - بیا حضرت عثمان رض غنی ثالث او
برحق خلیفه دی - بیا حضرت علی رض خلیفه رابع - او
برحق خلیفه دی - حضرت امام حسن رض او امام حسین
علیهما السلام قابل عزت اماماں دي - حضرت معاویه
رضی الله تعالی عنه ډیر نیک اصحابي دی - تقیه
منافقت دی - او لعنت په هیڅ مؤمن ښه نه دی - او قرآن
کریم هم دغه ډیرش سپاری دي - چه حضرت رسول
کریم صلی الله علیه وسلم جمع کړی وه -

(۸) د حنیفیانو مذهب کښ لئ کوانه تقلید رد کړی دے
او ایمان بی عمله لئ عبث ثابت کړی دی -

## د حضرت صاحب مذهب

خپل مذهب لئ په دا رنګ بیان کړی دی - چه قرآن
کریم چه شریعت دی مقدم په هر څیز دی - بیا
سنت دی چه د حضرت رسول کریم فعل دی - بیا حدیث
دی چه د حضرت رسول کریم قول دی - په قرآن
کریم هیڅ څیز مقدم نه دی - پس د حدیث نه فقه



حنفیه قابل اتباع ده - هله چه د قرآن او د سنت
او د حدیث او د عقل سلیم - او مشاهدی نه مخالف نه وي

## اولاد

د حضرت صاحب دوه ښځي وی - د یوی نه دوه ځامن
دی - خان بهادر میرزا سلطان احمد اکسترا اسسټنټ
کمشنر - او بل میرزا فضل احمد تانړدار د پولیس - دا
دواړه هلکان حضرت صاحب په سبب د بد عملئ عاق
کړي دي - میرزا فضل احمد یو څو کاله کیږي چه مړ دی
د بلی ښځي نه ځلور ځامن وو - حضرت میرزا بشیر الدین
محمود احمد - حضرت بشیر احمد - حضرت شریف احمد
حضرت مبارک احمد - دا ورستی هلک د حضرت صاحب
د وفات نه شپږ میاشتی اول وفات شه -

## وصیت

حضرت صاحب پنځه ډیرش کاله او یو څو میاشتي پر د
الهام د دعوی نه ژوندی وه - چه د وفات ورځي لئ
قریب شوی - نو حضرت صاحب یو تولی د خوار لسو
کسو مقرر کړ - چه تا سو ځما قایم مقام یئ - او پس د ځما

## وفات

دَوفات نه تاسو دَ اسلام دَ خدمت دَ پاره سعی کوئ - او هرهغه سړی چه تاسو مناسب او لائق وګنړئ - دَ هغه لاس بیوه وکړئ - او هغه ځما جانشین کړئ - حضرت صاحب خپل ټول جایداد په دی لاره کښ صرف کړ - او خالي لاس پاتی شه - چه دَ مرګ ایام قریب شو - حضرت صاحب لاهورته تشریف یووړ - هلته یو میاشت مقیم وو - ډیر وعظونه ئ وکړه - آخر کار دَ سلسل بول - او دَ اسهال مزمنه قدیمی مرض پرِ یوه سخته حمله وکړه - نماښام حضرت صاحب ناجوړه شه - ټوله شپه ناجوړ وو - بله ورځ سحر له پاؤ باندِ لس بجي دَ سحر دَ لمی په ورځ - په ځلیریشتمه دَ دویمی خود په ۱۳۲۶ سنه دیارلس سوه شپږ ویشت هجرِي کښ وفات شه - دَ وفات په وقت دَ حضرت صاحب عمر تقریبًا شپږ اویا کاله وه - هغه وقت چه وفات کید لو نو په ژبه ئ ای ځما عزیزه مولا - ای ځما عزیزه مولا الفاظ جاري وو -



حضرت صاحب دَ لاهور نه قادیان ته یوړی شه - او بله ورځ په بهشتِي مقبره کښ ښخ شه حضرت حکیم الامة مولٰنا مولوِی نورالدین صاحب پس دَ حضرت صاحب نه جانشین - او خلیفة المسیح مقرر شه - او حضرت نورالدین صاحب دَ حضرت جنازه وکړه - دَوفات په وقت کښ څه دَ پاسه پنځه لکه خلق ئ په سلسله دَ بیعت کښ داخل وو - حضرت صاحب خپل مریدان په احمدی مسلمانان موسوم کړی دِی - او خلق ور ته قادیانیان وائِي - حضرت صاحب دَ قدرت ثانیه دَ ظهور او دَ راتلو پیشینګوئِی وکړله - الله تعالیٰ دِ مونږ دَ قدرت ثانیه په راتلو سره مشرف کړِي - آمین

## دَ حضرت تصدیق دَ قرآن مجید نه

(۱) اِنَّا اَرْسَلْنَا اِلَیْکُمْ رَسُوْلًا شَاهِدًا عَلَیْکُمْ کَمَا اَرْسَلْنَا اِلٰی فِرْعَوْنَ رَسُوْلًاؕ - سورۃ مزمل - ترجمه ای خلقو ما ستاسو دَ هدایت دَ پاره دا محمدؐ رسول مقرر کړ

چه ستاسو په اعمالو باندې گواه وي - دی په مثل دَ هغه رسول
دَی - (یعني دَ حضرت موسیٰ ع) چه په طرف د فرعون لیږلی
شوی وه -

**نتیجه** - حضرت سیدنا محمد رسول الله صلی الله علیه
وسلم - په دی ایت کښ په مثل دَ حضرت موسیٰ علیه السلام
الله تعالی ستائلی دَی - دَ حضرت موسیٰ ع په دیارلس ۱۳۰۰ سوه
کاله پس حضرت عیسیٰ علیه السلام راغلی وه - پس دَ
حضرت محمد رسول الله صلعم نه دیارلس سوه کاله پس دَ
عیسیٰ ع مثل راتلونکی دَی - او هغه حضرت میرزا
غلام احمد دی -

(۲) وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ سورة نور

**ترجمه** - ای دَ حضرت محمد رسول الله صلعم اُمته تاسو کښ
دَ هغو کسانو سره دَ الله تعالیٰ وعده ده - چه څوک چه
په تاسو کښ مؤمن او نیک عمله وي - نو زه به هغو لره
په دی مزکه خلیفه گان مقرر کړم - په مثل دَ هغه
خلیفه گانو چه له تاسو نه وړنبی دَ حضرت موسیٰ ع



په امت کښ تیر شوی دي -

**نتیجه** - دَ حضرت موسی علیه السلام نه وروستو
دَ توراِیت دَ خدمت دَ پاره هر بل کاله پس یو لوئے
خلیفه یا مجدد پیدا شوی وه - تر دیارلس سوه کاله
پوری دولس خلیفه گان راغلی وو - په څوارلسمه صدئ
کښ حضرت عیسیٰ علیه السلام پیدا وو - پس دَ حضرت
محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم نه وروستو دَ
قرآن دَ خدمت دَ پاره هر سل کاله پس یو لوئ خلیفه
یا مجدد پیدا شه - لکه چه وعده وه - او تر دیارلس
سوه کاله پس دولس خلیفه گان راغله - او س په
څوارلسمه صدئ کښ مثل دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام
یو خلیفه ضروری وه چه پیدا شي - هغه حضرت
غلام احمد دی -

دَ محمدي امت خلیفه گان مثل دی دَ موسوی امت
دَ خلیفه گانو - پس دَ محمدي امت عیسیٰ هم مثل دَی
دَ موسوی اُمت دَ عیسی علیه السلام -

(۳) وَآخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ - سورة جمعه

**ترجمه** - او یو رسول به په آخرین کښې مبعوث کړم - او
دا آخرین به په خپل صفات کښې او اعمال کښې - او د دین
په خدمت کولو کښې مثل د اصحابو د حضرت محمد رسول
الله صلی الله علیه وسلم وي - او دوئ لا تر اوسه ایمان نه
دی راوړی -

**نتیجه** - صحیح مسلم کښې د دې آیت په تشریح کښې لیکلي
دي - چه دا رسول چه ظلي رسول به وي او دا ټولی چه
د آخرین دی - د اهل فارس نه به وي - او د حضرت
سلمان فارسي قوم او نسل به دی - پس حضرت غلام
احمد علیه السلام د حضرت سلمان اولاد او د فارس
نسل نه دی - او د ده ټولی هغه آخرین دی - چه
دی آیت کښې موعود وه -

(۴) اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ه -
دا الذکر چه مراد تر نه اسلام او قرآن دی - ما نازل
کړی دی - او زه به د دې حفاظت کوم -

**نتیجه** - د قرآن حفاظت په دوه قسمه شوید ی
بو په دا رنګ چه قرآن کریم یو داسې کتاب دی چه



د زرګونو خلقو یاد دی او که چری داسې وقت راشي
چه ټول الهامي کتابونه ورک کړی شي - او سوزوی
شوی - نو صرف یو قرآن دی چه به بیا دوباره صحیح
حافظان به د یاد نه تحریر کړي - مګر بل الهامي
کتاب دا عزت نه لري - بل په دا رنګ چه الله تعالی
هر سل کاله پس د قرآن کریم د خدمت د پاره د صدۍ
په سر یو لوئ مجدد پیدا کوي - چه هغه مجدد د هغه
اعتراضونه او غلطۍ ورکې کړی - چه د خلقو د ناپوهۍ
په سبب په معنو د قرآن شریف کښې پیدا شوی وي - د هرې
صدۍ په سر یو مجدد راغی - او د څوارلسمې صدۍ په سر
صرف یو حضرت غلام احمد وه چه د مجدد د نوب
دعوی ئې کړی ده -

(۵) اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ
**ترجمه** د الله تعالی فرمان بردار ه شي - او د حضرت
محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم تابعداري کوی
او تابعدار د هغه اولی الامر (د مجدد انو) او سئ -
چه په تاسو کښې پیدا کیږي -

نتیجه۔ دَ اسلام مجدد ان اُولِي الاَمر دی۔ دَ څوارلسمی
صدیٔ په سر۔ چه څوک مجدد راتلونکی وه چه دَ اُولِي
الامر نه دی۔ تابعداري لی ضروري ده۔
او دَدی څوارلسمی صدیٔ په سر صرف حضرت
غلام احمد دَ مجدد نوب دعوی کړی ده۔

(٦) كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ
ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝ ترجمه
تاسو به څرنګ دَ الله تعالیٰ ناشکر گذاره کیږئ۔ چه
تاسو موئ۔ یعنی گمراه وئ۔ نو دَ حضرت محمد رسول الله
صلی الله علیه وسلم په ذریعه لئ ژوندی کړئ۔ هغه
خدائ به بیا په تاسو باندِ حالت دَ موت یعنی دَ گمراهي
راولِي۔ پس هغه وقت چه په تاسو دا حالت راشي۔ نو
تاسو به بیا ژوندی کړي ئي۔ یعنی هدایت به درته وکړي
او پس له دی نه به الله تعالی ته رجوع وکړئ۔

نتیجه۔ خلق چه گمراه وو۔ نو په ذریعه دَ حضرت محمد
رسول الله صلی الله علیه وسلم هدایت یاب شو۔ او چه
بیا دوباره گمراه شي نو په ذریعه دَ حضرت عیسی



موعود به هدایت بیا موئي۔ او دَ څوارلسمی صدیٔ
مجدد چه حضرت غلام احمد دی۔ او هغه مثل دَ
حضرت عیسی علیه السلام دی۔ دَدی ایت په موجب
بیا به اسلام ژوندی کړی۔

(٧) مُبَشِّرًا بِرَسُوْلٍ يَّاْتِيْ مِنْ بَعْدِي اسْمُهٗ اَحْمَدُ۔ ترجمه
حضرت عیسی ع م وائي۔ چه زه په تاسو زیری کوم۔ دَ یو
رسول دَ راتلو۔ چه له مانه پس به راتلونکی وِی۔ او دَ هغه
نوم به احمد وي۔ حضرت موسی علیه السلام دَ خپل
مثل یعنی دَ حضرت محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم
دَ راتلو پیشینګوئي په تورات کښ کړی ده۔ او حضرت
عیسی علیه السلام دَ خپل مثل دَ حضرت غلام احمد
علیه السلام کړی ده۔

نتیجه حضرت محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم هم
احمد وو۔ او حضرت عیسی موعود هم احمد دی۔
لکه چه حضرت عیسیٰ غلام دَ موسیٰ ع م وه۔ حضرت
عیسی ع م موعود غلام دَ احمد یعنی غلام احمد دی۔

(٨) هُوَ الَّذِيْ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ

لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ ه
ترجمه خدای تعالیٰ هغه ذات دی۔ چه محمدؐ ئی خپل
رسول کړ۔ او هدایت (چه قرآن دی) او حق دین دَ اسلام
ئی ورکړ۔ او دا حق دین به په ټولو نورو باطلو دینونو
غالب کړی شي۔ اګرکه مشرکان ډیر نفرت تری کوي
ډیرو مفسرینو دَ دی آیت په تشریح کښ لیکلی دي چه
دَ اسلام کمال او غلبه به حضرت امام مهدي آخر زمان
په زمانه کښ په کامل طور ظاهر شي۔ او هم په دا رنګ
چه حضرت غلام احمد مهدي شه۔ نو هغه دَ اسلام
غلبه په خپلو تحریرونو۔ تقریرونو۔ کتابونو۔ دلیلونو
بحثونو په نورو دینونو ظاهره کړه۔ او مخالف خلق ورته
عاجز شو لکه چه کل عالم دَ هندوستان دَ دی امر
ګواه دی۔ دَ لاهور په جلسه اعظم مذاهب کښ چه
دسمبر سنه ۱۸۹۶ع کښ قائمه شوی وه۔ حضرت صاحب
اسلام دَ باقي ټولو دینونو په مقابل کښ غالب ثابت کړ
آریه۔ نصاری۔ سکان۔ یهود۔ ورته په مقابل کښ
عاجز شو۔ دَ کلکتي په جلسه مذاهب کښ په سنه ۱۹۰۹ع



کښ۔ او په اله اباد کښ په جنوري سنه ۱۹۱۱ع کښ دَ
حضرت صاحب خادمانو۔ په نورو مذهبونو اسلام
غالب کړ۔ او مخالفو هم تسلیم کړ۔
(۹) اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ
عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ه ترجمه
خدایه سمه لار راته وښایئ۔ چه لار دَ هغو کسانو ده
چه تا پرِ انعام کړی دی۔ او مونږ دَ مغضوب علیه
(یهودیانو) دَ لاری نه وساتی۔ او هم دَ ضالین (عیسایانو)
دَ لاری نه بچ کړی۔ په دی آیت کښ خدای تعالیٰ دا دعا
ښولی ده۔ چه دعا کوی۔ چه خدای تعالی تا سو مسلمانان
دَ نبیانو وارثان کړی۔ او دَ یهودیانو دَ وارث کیدو نه
او دَ نصاری دَ لاری نه وساتی۔
دی آیت کښ خدای وائي چه دعا کوئ چه تا سو دَ یهود
او دَ نصاری وارث نه شئ یعنی دَ هغوئ خوئ خصلت
د د کښ پید انه شي۔ او برخلاف د دی نه دَ انبیاؤ
دَ خوئ او دَ خصلت مالکان شئ۔ دا ظاهره ده۔ چه
هر هغه امر نه چه خدای تعالی مسلمانان منع کړی وو

هغه ضرور په هغو راتلونکی وو - او بیا داسی وقت
راغی چه بعض خلق د مسلمانانو نه د یهودیانو په شان
د اماما نو او د مجددانو مخالف شو - او د هغوی کار ونه
ئی اختیار کړی وو - دری اویا فرقی شو - لکه چه په
حدیث کښ راغلی دی - چه ستفرق امتی علی ثلث
وسبعین فرقة کلهم فی النار الا الناجیه - چه مسلمانان
به دری اویا فرقی شی او قول به لائق د نار شی - مگر
د هغو نه به یوه وی چه د نار نه به بچ وی - او بعض به
د نصاری په شان شی - چه خپل پیشوایان به لکه
د حضرت عیسیٰ ع م د خدائیتعالی په شان صاحب قدرت گڼی
پس دا ظاهره ده چه دا قول کار ونه په مسلمانانو
کښ ظاهر شو - او په مسلمانانو کښ څوک د یهود په شان
شو - او څوک د نصاری په شان شو - پس هغه وقت
چه یهودیان خراب شو نو حضرت عیسیٰ ئی هدایت
له راغی - اوس چه مسلمانان د یهودیانو په شان
د اسلام نه غافل شو - نو بائده دی چه یو مثل حضرت
عیسی علیه السلام ظاهر شی - پس حضرت غلام احمد



چه هم دا دعوی لری - ظاهر شه - اوس دا خیال کول
چه مثیل د یهودو خو د مسلمانان شی او مثل د عیسی
د نه راځی - بلکه د یهودو عیسی د دوئ له راشی - او
اسلام کښ د دومره برکت نه وی چه یو مثل د حضرت
عیسی ع م ځان له پیدا کړی - که چری اسلام دا برکت
نه لری نو خیر امة به څه شان شه -

## احادیث

(۱) لوکان ایمان بالثریا لناله رجل من اهل الفارس -
ترجمه - په آخره زمانه کښ چه ایمان د دنیا نه داسی ورک
شی - چه لکه چه د مزکی نه آسمان ته لاړ شی - پس
هغه وقت به یو ځوان د اهل فارس نه پیدا شی - چه
هغه ایمان به بیا دوباره په دنیا کښ قایم کړی -
نتیجه - حضرت غلام احمد علیه السلام د حضرت
سلمان فارسی د اولاد نه دی - او په دی زمانه کښ
چه اسلام او ایمان په حقیقت کښ ورک شوی وه -
ده بیا دوباره قائم کړ

(۲) لا تذهب الدنیا ولا تنقضی حتی یملک رجل من

اهل بیتی یواطی اسمه اسمی - اخرجه احمد وابوداؤد
ترجمه - نه به دا دنیا ختمه - او نه به تیره شي - څو
چه څما دَ اهل بیت نه یو کس په دنیا مالک نه شي او
دَ هغه نوم به څما نوم یعنی احمد وي -
نتیجه - دا احمد دَ حضرت محمد رسول الله صلی الله
علیه وسلم اهل بیت دَی - ځکه چه دَ سلمان فارسي
اولاد دَی - او هغه ته سلمان منا اهل البیت - چه
سلمان څما دَ اهل بیت نه دَی - ویلی شوی دِی - او نوم
ئ هم احمد دَی -

(۳) ینزل عیسی ابن مریم عند المنارة البیضا شرقی
دَ مشق رواه الطبرانی عن اوس بن اوس - ترجمه
طبراني له اوس بن اوس نه روایت کوِی - چه عیسیٰ بن
مریم به یوی سپینی مناری څخه دَ دَمشق نه په لور
دَ نمر خاته نازلیږي -
نتیجه - قادیان په هندوستان کښ دَی - او دَمشق
په شام کښ دَی - قادیان دَ دَمشق نه عین نمرخاته
دَی - او حضرت غلام احمد په قادیان کښ پیدا شوی دَی -



(۴) ان روح الله عیسی نازل فیکم فاذا رأیتموه فاعرفوه
فانه رجل مربوع الی الحمرة والبیاض علیه ثوبان
ممصران کان رأسه یقطر وان لم یصبه بلل فیدق
الصلیب ویقتل الخنزیر الخ رواه الحاکم عن ابی هریرة
ترجمه - عیسی روح الله به په تاسو کښ نزول کوی
هغه وقت چه تاسو لیدَ وینئ نو هغه وپیژنئ - دَ
هغه دَ پیژندګلو دا نښه ده - چه دَ هغه دَ سر ویښته
به زورند وِی - او دَ هغه رنګ سرخی سفیدی وِهی او دَ هغه
دَ ویښتو نه به اوبو څاڅکی څڅیږی - سره دَ دی چه
هغه به لاونده کړی شوی نه وِي - هغه به صلیب
برباد کړِي - او خنزیران به قتل کړِي -
نتیجه - دَ حضرت ناصری رنګ په حدیث کښ سور
او ویښته دَ سر تاؤ کړی تاؤ کړی لیکلی دِی - او هغه
عیسی روح الله چه اسلام کښ نزول کونکی وه - دَ هغه
رنګ سرخی سفیدی وِهی - او زورند ویښته - او بغیر دَ
لوندولو نه به ګویا دَ اوبو څاڅکی ترڅاڅی - یعنی دیر
زلقیدونکی به وِی - پس دا شکل او شمائل دَ حضرت

غلام احمد دی-

(۵) بینا انا نائم رأیتنی اطوف بالکعبة فاذا رجل آدم
سبط الشعر بین رجلین ینطف رأسه ماء فقلت من
هذا قال هذا ابن مریم الخ ابن قطن رواه مسلم عن ابن عمر

ترجمه- مسلم له ابن عمر نه روایت کوي -چه حضرت
رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمائی چه زه اوده وم
او په خوب کښ وینم چه دَ کعبې طواف کوم څما نظر ناګهانه
په یو سړی ورسم شه- غنم رنګ وه- او دَ آویښته ئی
سم وو- او دَ دوه وُسړو په مینځ کښ وه- او دَ هغه د
سر نه دَ ابو څاڅکی تو ئیدل- ما پوښتنه وکړه چه
دا څوک دی- څواب را کړی شه- چه دَا ابن مریم دی-

نتیجه- دا رنګ او شکل هم دَ ورېښی حدیث دَ رنګ
په شان دَی-

(۶) المهدی من ولدی ابن اربعین سنة کان وجهه
کوکب دری فی خده الایمن خال اسود- علیه عباتان
قطوانتان کانه من رجال بنی اسرائیل- رواه ابو نعیم

ترجمه- مهدی څما اولاد څلویښت کلنی به وی-



او دَ هغه دَ مخ نه به لکه دَ ستوری پلوشی ځي -او
دَ هغه په کس انګی به دَ زخی توردا غ وي - او په
هغه به دوه روښانه څادرونه وي- ګویا
په دَ بنی اسرائیلو نه دی-

نتیجه دَ حدیث- کل تقی ونقی فهو آلی- چه هر پرهیز
ګاره او متقی څما اولاد دی - مهدی دَ حضرت
رسول کریم په اولاد کښ داخل دی- هغه وقت چه
ظاهر یږی دَ څلویښتو کالو به وی- حضرت غلام احمد
دَ څلویښتو کالو په عمر کښ دَ الهام دعوی کړی ده-
دَ حضرت رسول کریم په آل کښ داخل دی- لکه چه هر
متقی او پرهیزګاره دی- په کس انګی تورداغ ئے
هم لرلو- مخ نه ئې هم په دا رنګ پلوشی تللی-
او بدن ئې دَ بنی اسرائیلو په شان وو-

(۷) عن علی قال المهدی من قریش آدم ضرب الرجال
رواه نعیم بن حماد-

ترجمه مهدی به دَ قریش نه وی - او په رنګ به
دا رنګ غنم رنګ وی -لکه چه تا سو دَ دی عرب خلق ورنګ

**نتیجه** - په دی حدیث کښ دَ حضرت مهدي رنګ غنم رنګ راغلی دَی - حضرت غلام احمد قریش دَ مور دَ طرف نه دی -

(۸) یقول نبی صلی الله علیه وسلم - یخرج المهدی من قریة یقال لها کدعه - ویصدق الله تعالی ویجمع اصحابه من اقصی البلاد علی عدة اصحاب بدر ثلاث مائة وثلاثة عشر رجلا ومعه صحیفة مختومة فیها - عدد اصحابه باسمائهم وبلادهم

جواهر الاسرار -

**ترجمه** - حضرت رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمائي - چه مهدي به دَ یو کلی نه ظاهر یږی چه دَ هغه نوم به کدعه وی - خدای تعالی به دَ هغه تصدیق کوی - او راجمع به کړي - دَ ملک دَ خواؤ شانه هغه له اصحاب او هغه به دَ اهل بدر تعداد لري - یعنی دری سوه دیارلس کسه به وي - او هغه سره به یو کتاب وی - چاپ شوی - په هغه کښ به دَ هغو نومونه او وطنونه درج وی -



**نتیجه** - حضرت غلام احمد په کدعه کښ پیدا دی دا دَ قادیان هغه نوم دَی - چه عام خلق ورته دَ هغی علاقی والئ - یعنی کادی - عربي کښ کدیه لیکلی شي -

دَ دعوی په ابتدا کښ چه حضرت غلام احمد دَ اسلام دَ طرف نه دَ نصاری سره بحث له امبرسرته تلی وه نو هغه وقت دَ هغه سره دری سوه دیارلس تنه اصحاب وُو چه - چه دَ هغو نومونه کتاب آئینه کمالات الاسلام کښ درج دی - او دَ مختلفو ځایونو دي -

(۹) لن تهلک امتی. انا فی اولها وعیسی ابن مریم فی آخرها والمهدی فی اوسطها رواه ابو نعیم -

**ترجمه** - زما امت اسلام به هرګز هلاک نه شی - ځکه چه مقتدا او بانی ئې زه یم - او په آخر کښ به عیسی ابن مریم وی - او یو مهدی به ئې ترمینځ وی -

**نتیجه** - حضرت رسول کریم په اوله صدئ کښ دَ اسلام تیر شوی دَی - حضرت شیخ عبد القادر جیلانی چه دغه مهدی وه - په شپږمې او اوومې صدئ په مینځ کښ تیر شوی دَی - حضرت غلام احمد چه په موجب

دَلامهدِي الاعيسٰی مسیح موعود او مهدی دَ
څوارلسمی صدئ په سر راغی - گویا په اسلام چه
اوس دیارلس سوه کاله تیرږی - دَ اول صدئ په
سر حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم وه - په
وسط کښی یعنی شپږمی او اومی صدی په مینځ کښ
پیران پیر مهدی وه - او دَ دیارلس سوه په ختم
کیدلو کښ او دَ څوارلسمی په سر کښ مسیح موعود دی
چه هغه حضرت غلام احمد دَی -

(۱۰) عن ابی هریرة رض قال اعرف عن رسول الله صلی الله
علیه وسلم ان یبعث لهذه الامة علی رأس کل مائة من
یجدد لها دینها رواه ابو داؤد -

ترجمه حضرت ابوهریره رض وائی چه هغه خبری چه
مانه دَ حضرت رسول کریم صلی الله علیه وسلم یادی دی
دَهغو نه یوه داده چه هغوئ فرمایل چه الله تعالٰی
به دَ اسلام دَ خدمت دَ پاره دَ هری صدئ په سر
یو کس رالیږی - یا پیدا کوي - چه هغه به دَ اسلام
تجدید کوي -



نتیجه - پس دَ حضرت رسول کریم صلی الله علیه وسلم
نه - هر سل کاله پس دَ صدئ په سر لوئ لوئ مجددان
راغله - دوئ سره بعض واړه مجددان هم وو - مګر
لوئ صرف دولسّ په دی دیارلسّ صدو کښی تیر
شوي دي - اوس دَ څوارلسمی صدئ په سر هم ضرور
دی - چه مجدد پیدا شي - سو اله حضرت غلام احمد نه
بل هیڅ اتردی دیرش کالو پوری دَ مجدد توب دعوی
په هیڅ ملک کښی دَ مسلمانانو نه ونه کړه - اوس حضرت
غلام احمد صرف هغه کس دی چه چا دا دعوی کړی ده
هر کله چه دَ حضرت موسی م نه وروستو دَ څوارلسمی
صدئ مجدد حضرت عیسٰی دَ ناصری وه - پس دَ
حضرت محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم نه
وروستو دَ څوارلسمی صدئ مجدد هم دَ حضرت
عیسٰی مثل دی - یعنی مسیح موعود دی -

## غرض دا چه

دَ دی لسو حدیثونو نه دا معلوم شو - چه هغه لوئ
مجدد چه په اسلام کښ دَ څوارلسمی صدئ په سر

راتلونکی وہ - پہ موجب د حدیث لا مھدی الا عیسےٰ
همہ مهدي او هم مسیح موعود دی - د عرب نہ شرق
تہ هندوستان کښ د کده نومی مقام کښ راتلونکی دی - غنم
رنګ دی - د سر ویښته ئې زوړند دي - او بریښنا کوي
پہ کس اننکی د توری ذخی خال لري - محمد - یا - احمد
نوم لري - د اهل فارس نہ دی - د حضرت سلمان فارسي
اولاد دی - ورک شوی ایمان بہ بیا قایم کړی - د یو
طرف نہ بہ قریش وي - او بل طرف نہ بہ فارسي النسل
دی - دا هغہ خبری دی - چہ پہ حضرت غلام احمد
د قادیان - یا د کده - پہ مبارک ذات کښ موجود دی

## د حضرت غلام احمد حلیہ چہ حدیثونہ پر صادق دی - دا دہ

پہ رنګ غنم رنګ - پہ قد میانہ - سترګی غټی
پہ مخ غوښہ کمہ - تندی خلاص - او لوړہ پوزہ -
مخ لکہ د ستوري ځلیدونکی - ګنړه او ږبہ بد یره -
ښایسته او ځلیدونکی ویښته - د سر ویښته اوږدم



اوزوږند - غاښونہ سپین - سینہ پلنہ - ژبہ ئې قدری
نختہ - چہ بہ ناست وو - او خبری بہ ئې کړلی - نو ښی
لاس بہ ئې پہ پتون واهہ -

## مزاج

حلیم - او نرم دلہ - سخی او مهربانہ - پہ خلق کښ د انک
لعلی خلق عظیم نمونہ وہ - پہ رفتار کښ تیز - چہ بہ
ناست وہ بل چا تہ بہ ئې کم کتل - شپہ او ورځ بہ
پہ دعا کښ لګیا وہ - سترګې بہ ئې د ژړانہ پړسیدلې و

**لباس** - پہ اوړی ژمی کښ ئې ګرمی جامې اغوستلی
اکثر سپین د ململو پټکی بہ ئې پہ سر ولو - پنجابۍ پېزی
ئې پہ پښو کولی - کونټۍ بہ ئې پہ لاس کښ لرلہ - د حضرت
صاحب یو پټکی څمو نږ رور محمد دلاور خان صاحب
احمدي ساکن اسماعیلہ علاقہ یوسفزی څخہ موجود
دی - دا پټکی د ململو دی - او د نکریزو داغونہ لري
دا پټکی پہ ستمبر ۱۹۰۴ء کښ د ګورداسپور نہ هغہ
د حضرت صاحب د خوی د حضرت بشیر احمد پہ ذریعہ
د حضرت صاحب نہ راآخستی وہ -

**خوراک** - اکثر ترش څیزاَچار - آم - ما ستہ
قدری بښوروا ساده خوراک به ئې خوړ - بلکه ډیر کم
خوراکه وه -

**مرض** - دَ سر درد - کرده درد - سلسل بول او
اسهال مزمن ئې تل ملګری وه - آخر په اسهال
مزمن وفات شه -

**عادت** - په مریدانو بانډِ لکه دَ پلار بلکه ډیر زیات
مهربانه وه - په خپل دښمن مهربانه دَ اسلام
دَ دښمن سخت دښمن وه - غیرت ئې په وجود کښ ډیر
زیات وه - مستقل مزاج وه صابر وه - عابد وه - شکور
وُه - امین وه - دَ قادیان هندوان او سِکان ئې - دَ
صداقت او دَ پرهیزګارِي ګواه دی -
لَقَدْ لَبِثْتُ فِیْکُمْ عُمُرًا اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ٥ یعنی دَ دعوٰی نه
اول څما ډیره حصه دَ عمر تاسو کښ تیر شوی وه - په
هغه غور وکړِئ که څه دَ عقل نه کار اَخلِئ - دا حضرت
رسول کریم دَ مکی کفارو ته ویلی وو - او هم په دا شان
حضرت غلام احمد دَ قادیان هندوانو سِکانو - او



مخالفو مسلمانانو ته ویلی وو - یُشْبِهُ فِی الْخَلْقِ وَلَا یُشْبِهُ
فِی الْخُلُقِ - چه حضرت مهدیِ آخر زمان به دَ حضرت
رسول کریم دَ اخلاق نمونه وی - او دَ هغه اخلاق
به لری - او په رنګ او په شکل کښ به دَ هغه په شان
نه وِي - ګویا حضرت احمد دَ قادیان دَ حضرت احمد
مجتبی علیه الصلوة والسلام په اخلاق کښ کامله نمونه وه
زه دلته صرف په دغه یو څو حدیثونو بس کوم او
اوس یو څو اقوال دَ نورو بزرګانو لیکم - چه هغو هم
دَ مهدی آخر زمان او دَ حضرت مسیح موعود دَ را تلو
وقت دا څوارلسمه صدیِ بښوولی ده - اګر چه واضح
واضح ډیر احادیث شته دِي چه زه دلته درج کړم
مګر کتاب لوئیږی او عاقل له او طالب دَ حق له یو
حدیث هم کافی دی -

## اقوال دَ بزرګانو

(۱) حضرت امام محی الدین ابن عربي په خپل تفسیر
کښ لیکی - چه حضرت عیسٰی علیه السلام دَ دی جهان
نه چه عالم سفلی دی عالم علوی یعنی جنت ته تللی دی

اوبیا په آخره زمانه کښ به په بل بدن کښ ظاهر شي -
دَهغه الفاظ دا دی - وجب نزوله فی آخر الزمان بتعلقه
ببدن آخر - چه دَ عیسے نزول په آخره زمانه کښ واجب
ده چه په بل بدن سره وِي - یعنی هغه به پخپله نه
وِي - بلکه یو بل کس به دَ هغه روحانی صفات لري -
او پیدا به شي - دَحضرت غلام احمد هم دا دعوی ده -

(۲) حضرت احمد مقوی مالکی مغربی پخپل تفسیر
کښ وائي فی قوله علیه السلام یوشک ان ینزل ابن مریم
فیکم واماً مکم منکم انما کان الامام منا لئلا یتدنس
بغبار الشبهه وجه لا نبی بعدی - تفسیر نفح الطیب جلد ۲

ترجمه - دَحضرت رسول الله دا حدیث چه یقیناً ابن مریم
به تاسو مسلمانانو کښ ظاهر شي - او هغه به ستاسو
امام وِی - له تاسو مسلمانانو نه به وِي - داځکه هغه
ویلی دِی - چه دَحدیث لا نبی بعدی په مخ څه غبار او
گرد دَ شک دبل رسول دَراتلو په سبب پری نه ووزی
گویا صاف ئې و فرمایل چه هغه به یو امام وِي له مسلمانانو
نه - پس دی قول نه هم ثابته شوه - چه دد ی امت



ابن مریم به یو مسلمان وِی - او دَحضرت رسول الله
صلی الله علیه وسلم دَ امت نه به یو کس وِي - لکه چه
حضرت غلام احمد دی - او حضرت عیسی دَناصری به
نه وِی - چه دَحضرت موسیٰ ؑ دَ امت نه وه -

(۳) حضرت شیخ احمد سرهندي مجدد الف ثانی په خپل
مکتوبات کښ لیکلی دِی چه امام مهدي آخر زمان به هغه
وقت ظاهر یږي - چه سپوږمۍ به په دیارلسمه دَرمضان
چه دَ قمر دَ تندرنیولو اوله شپه ده - تندرونیسی - او
نور به په اته ویشتمه دَرمضان چه دَشمس دَ تندرنیولو
مینځنۍ ورځ ده - اوس نور او سپوږمۍ په دغه دواړو
تاریخونو کښ دَرمضان په میاشت کښ په سنه دیارلس
سوه یولس ۱۳۱۱ هجری کښ تندرونیول - او دَحضرت غلام احمد
دَ مهدی توب تصدیق ئې وکړ -

(۴) حضرت شاه ولی الله دهلوي چه دَ یولسمی صدۍ
مجدد وه - وائي چه ما دَ امام مهدی آخر زمان دَ
پیدا کیدلو دَ وقت معلومولو دَ پاره دعا وکړه - نوما ته
الهام وشه چه **چراغ دین** - چه بیدار شوم

اودَ چراغ دین عدد دَ ابجد په حساب هم معلوم کړے نو
دولس سوه اته شپیته (۱۲۶۸) هجری وه - پس ښکاره یقین وشه
چه مهدی به په دغه وقت پیدا شي - اوس هغه وقت
چه دَ هغه سن راغی نو د حضرت غلام احمد عمر اتلس
کاله وه - ځکه چه په دولس سوه یو پنځوس (۱۲۵۱) هجری کښ
پیدا وه —

(۵) دَ ملتان دَیو بزرگ شعر دی - چه دَ ډیرو خلقو
یاد دَی - او هغه دا دی - شعر -

درسن غاشی ہجری دو قِران خواہد بود * از پئے مہدی و دجال نشان خواہد بود

چه هغه وقت چه سن هجری غاشي یعنی دیارلس سوه (۱۳۱۱)
یولس شي - نو دَ مهدی او دَ دجال دَ پاره به دوه علامی
ظاهریږي - هغه دوه علامی دَ رمضان په میاشت
کښ چه په دغه سن کښ وی - دَ شمس دَ قمر تندرینول
وو - او دا هم ترِ ظاهر شو چه دجال سره به مهدی وي
او دغه مهدی به په موجب دَ حدیث لا مهدی الا عیسے
مسیح موعود وي - پس دغه سن کښ حضرت غلام احمد صاحب
دا سې مدعی وه - چه دا ثبوت په هغه پوره شه -



(۶) حافظ برخوردار صاحب دَ چټی ضلع سیالکوټ
خپل انواع نومی کتاب کښ وائي
پچھے اک ہزار دے گذرن ترئی سال ہو عیسیٰ ظاہر ہوسیا کرسی عدل کمال
یعنی هغه وقت چه یوزر او دری سوه کاله دَ هجرت تیر
شي - نو حضرت مسیح موعود به ظاهر شي - او عدل به
قایم کړی - پس دَ دیارلسمی صدئ نه وروستو په سر دَ
څوارلسمی صدئ حضرت غلام احمد دَ مسیح موعود
کید لو دعوی وکړه -

(۷) امام محی الدین ابن عربی خپل کتاب عنقائ مغرب
کښ لیکی - چه حضرت امام مهدی آخر زمان - خاتم
الخلفا دَ اسلام دی او بیا لیکي چه هو الخاتم من العجم
ولا من العرب شرح فصوص الحکم - هغه خاتم الخلفاء عجمی دی
او عرب نه دی - یعنی عجم کښ به وي - عجم سوا له عرب
کل دنیا ته وائ - او خصوصًا فارس او افغانستان
او هندوستان ته - پس مهدی به دَ دی دری ملکونه
وی - حضرت غلام احمد لکه دَ حضرت عیسیٰ چه دَ
موسوی سلسلی خاتم الخلفا وه - دَ اسلام خاتم الخلفا دی

دَ فارس دَ خاندانہ دَی۔ او هندوستان کښ ظاهر شوی دَی

(۸) فصوص الحکم کښ لیکی۔ چه هغه چه خاتم الولایت دَ اسلام دَی۔ هغه حضرت مسیح موعود دَی۔ او هغه به توام پیدا کیږي۔ یعنی ورور او خور په یو حمل کښ پیدا شي۔ او دَ خور پښتو ته به لَی سر وِی۔ دَ حضرت غلام احمد دَ تولد نه وړنبی خور پیدا شوه۔ او بیا حضرت غلام احمد پیدا شه

(۹) اخوند درویزہ په خپل کتاب ارشاد الطالبین کښ لیکي چه امام مهدیِ آخر زمان به په هندوستان کښ پیدا کیږِی۔ لکه چه په دی حدیث کښ دی عصابتان

من امتِی احرزهما الله من النار۔ عصابة تغزو الهند

وعصابة معه عیسیٰ ابن مریم رواه احمد والنسائِی

عن ثوبان۔ ترجمه۔ احمد بن حنبل له ثوبان نه روایت کوِی۔ چه ځما دَ امت دوه ټولِی دِی چه هغوئِ به الله تعالیٰ دَ دوزخ دَ اور نه بچ ساتِی۔ یو هغه ټولی دَی۔ چه هندوستان کښ به غزا کوِي۔ او بل هغه ټولی دَی چه حضرت مسیح موعود سره به وِی۔ کنز العمال ج (۷) جلد

یو ټولی چه غزائی وکړه هغه دَ حضرت سید احمد بریلوی دی



چه په سید باچا مشهور دَی۔ او بل ټولی دَ حضرت غلام احمد دی چه دَ مسیح موعود دعوی لري۔ دا دواړه د هندوستان د ملک دي

(۱۰) حضرت شاه نعمت الله ولِی فرمائِی۔

غ۔ رَ سال چون گذشت از سال — بو العجب کار و بار می بینم
غم مخور زانکه من درین تشویش — خرمی وصل یار می بینم
صورت و سیرتش چو پیغمبر — علم و حلمش شعار می بینم
ا۔ ح۔ م۔ د۔ مے خوانم — نام آن نامدار مے بینم
مهدی وقت و عیسی دوران — هردو را شهسوار مے بینم

هغه وقت چه دَ سن دَ هجرت غَ۔ رَ۔ یعنی دولس سوه شِی نو عجیبه عجیبه کار و نه به شروِع شِی۔ ته دغه وقت کښ غم مه خوره ځکه چه زه دغه دَ پریشانتیا په وقت کښ دَ یار وصل وینم۔ دَ هغه یار صورت او خوئے به دَ حضرت رسول کریم په شان وِی۔ او صاحب دَ علم او دَ حلم به وِي۔ آحمد به دَ هغه نوم وِی۔ هم به مهدی وِی۔ هم به مسیح موعود وِي۔

(۱۱) نواب صدیق حسن خان صاحب دَ بهوپال خپل کتاب حجج الکرامه صفحه ۳۹۴ کښ لیکی چه نعیم بن حماد

روایت کوي۔ چه دَ ابو قبیل قول دی ۔ چه دَ اکثرو بوزرګانو په دی امر اتفاق دی۔ چه حضرت مهدی آخر زمان به پس له دولسمی صدۍ هجری نه پیدا کیږي۔ یعنی دیارلسمه صدۍ کښ به پیدا شي۔ حضرت غلام احمد په سن دولس سوه یو پنځوس [١٢٥١] هجري کښ پیدا شه۔

(١٢) قاضي ثناء الله صاحب پاني پتي خپل کتاب سیف المسلول کښ لیکی چه دَ علماؤ دا غالب ګمان دی۔ چه حضرت مهدي به په دیارلسمه صدۍ کښ پیدا شي۔

(١٣) نواب صدیق حسنخان صاحب حجج الکرامة کښ خپله رائ لیکي چه۔ چون از قرآن که در شمار جمل از سنین هجرت وے صلی الله علیه وسلم سیزدہم ست ونود سال گذشت ومهدی در عالم ظاهر نشده بخاطر مے رسد شاید که بصد چهار دهم ظهور واتفاق افتد۔ یعنی چونکه دَ حضرت رسول کریم صلی الله علیه وسلم په هجرت دولس سوه نوی تیر شوا و مهدی په جهان کښ ظاهر نه شه۔ خما په زړه کښ راځي چه شاید دَ هغه ظهور په څوارلسمه صدۍ کښ به شي۔

دَ دی نه یو کال پس حضرت صاحب ته الهام شروع شه



(١٤) قاضي ارتضا علیخان صاحب په خپل کتاب مهدی نامه کښ لیکي۔ چه اول دَ مهدي آخر زمان دَ ظاهر یدلونه دَ څه قدری علامونه څان اشنا کول پکار دي۔ چه دَ سن دیارلس سوه [١٣٠٠] او پنځلس [١٥] سوه هجرت په منیځ کښ به وي۔ الحمد لله چه حضرت غلام احمد مهدي موعود هم په دغه میعاد کښ ظاهر شه۔

(١٥) حدیث الغاشیه کښ لیکلي دي۔ چه بعض نجومیان وائي چه د څوارلسمی صدۍ هجرت په اوّم کال به حضرت مهدي ظاهر شي۔ او دا هغه سن دَی چه حضرت صاحب دَ بیعت دَ پاره اشتهار ورکړی وه۔

(١٦) په ازالة الاوهام کښ دکریم بخش نومي یو سړي په شهادت دَ حضرت سائین ګلاب شاه نومي یو مجدوب ساکن دَ جمال پور ضلع د لدهیانی پیشینګوئي درج ده ۔ چه حضرت عیسیٰ م مړ دی او دَ اسلام حضرت عیسیٰ پیدا شه غلام احمد نوم لري۔ او قادیان نومی کلي کښ دی۔ هغه دَ تفسیرونو غلطئ درستی کړي۔ او ملایان به دَ هغه مخالف شي۔ او په هغه به دَ کفر فتوی ورکړي۔ دا پیشینګوئي هغه دَ حضرت صاحب دَ دعوی نه قریبًا دیرش کاله اول کړی وه۔ لا چه حضرت صاحب ځلمی هلک وه

(۱۷) مولوی عبدالله صاحب غزنوی سابق ملا محمد اعظم صاحب د
غزنی ئی فرمائلی وو - چه د آسمان نه یو نور راغی - او ماوی چه
خما په اولاد به نازل شی - مگر هغه په قادیان کښ په غلام احمد
نازل شه او خما اولاد ترې محروم پاتی شه - مولوی عبدالله صاحب د
حضرت غلام احمد د دعوی نه اول دا پیشینگوئی کړی وه -

(۱۸) ملا صفی الله صاحب د مصری بانډې ضلع د پښاور د خپل کتاب
سلک سیر په آخر کښ لیکی چه حضرت سید امیر صاحب د کوټی
مجدد د دیارلسمی صدئ وه - او هغه وخت چه هغه فوت کیده
نو هغه دا پیشینگوئی وکړه چه د څوارلسمی صدئ مجدد پیدا شه
خو لا وخت ئی د ظهور نه دی - ملا صفی الله لیکوالی چه حضرت سید امیر صاحب دا
پیشینگوئی په سنه دیارلس سوه څلور نوی (۱۳۹۴) کښ کړی وه - او خما په گمان
شپږ کاله لا نور پاتی دی - نو په سر د څوارلسمی صدی به هغه بل مجدد
اعلان وکړی - لکه چه حضرت غلام احمد ع م په سر د څوارلسمی صدی اعلان وکړو

(۱۹) مولو محمد یحیی صاحب د دیکران تحصیل د مانسهره وائی چه ما حافظ
نور محمد صاحب د کوټی چه اصل او سید نکی د امازو گړئ تحصیل مردان ضلع
د پښاور دے دیلی ی چه یوه ورځ حضرت سید امیر صاحب د کوټی او د سکولو
او زه موجود وم - نو هغوئ راته ووی چه څمونږه زمانه تیره شوه -



اوس د بل چا په زمانه کښ یو - نو ما ترې نه پوښتنه وکړه چه ستاسو د نه
څه مطلب دی - زه پوه نه شوم - نو حضرت سید امیر صاحب بیا ووې چه په
هره زمانه کښ یو مجدد د دین د خدمت د پاره پیدا کیږی - اوس څمونږ
وار تیر شو - او بل مجدد پیدا شه -

(۲۰) مولوی محمد یحیی وائی چه بل شهادت د گلزار خان نومی
پښتون دے - چه اوس توپئ نومی کلی کښ دی - او اصل او سید ونکی د بهیر
تحصیل د پښاور دے - هغه قسم وخوړ او وه ئی وِچه حضرت سید امیر صاحب
د کوټی یوه ورځ په عام مجلس کښ ناست وه او ډیر خوشحاله وه - او وه ئی
فرمائیل چه خما بعض آشنایان به مهدی آخر زمان په خپلو سترگو وینی
او د هغه خبری به په خپلو غوږونو واوری -

(۲۱) مولوی حمید الله صاحب اخونزاده د سوات حضرت غلام احمد ع م
ته خط لیکلی وه - چه چونکه زه هم د حضرت سید امیر صاحب معتقد ئی نو
یم - او ما ترې هم آورید لی دی - چه هغه د خپل مرگ نه یو دوه کاله مخوا
ویلی وچه مهدی پیدا شوی دی خو لا وخت ئی د ظهور نه دی - پس نه تا څخه
د گواهی لیکم - څکه چه گواهی پټول د خدای تعالی جرم دی -

(۲۲) میرزا محمد اسماعیل صاحب قندهاری سابق چیف محرر د مدرسو
د ضلع د پښاور چه د حضرت سید امیر صاحب ډیر دوست وه - فرمائی چه

ماتِرهم آوریدلي دي - چه مهدی پیدا شوی دی خو لا وقت ئې دَ ظهور نه دی - چاتِري پوښتنه وکړه چه نوم ئې څه دَی نو وه ئې فرمایل چه نوم ئې نه ښایم مګر دومره وایم چه ژبه ئې پنجابۍ ده -

(۲۳) دَهزار مسائل مصنف اخوند رشید وائۍ چه

| | | | |
|---|---|---|---|
| ناګهانه به دَجال | داعالم کاندِ پائمال | داوعده تیره صدی کوه | موقوف هېره مطلې دَه |
| حضرت عیسے به وریسی و | په دوند کا زمانه سوره | چه عیسے به درسیږی | دَده روح به تر قبضیږی |
| نور مهدی آخرزمان | هغه وقت به شي عیان | ښائسته ښکلي جبین | کشاده ابرو مهین |
| لوړه پوزه ئې بلنده | هم حلیه دَده خرکنده | دَحضرت نبي به ښیر | مرئی په ژبه لیر |

یعني چه دجال راشي نو په تیره صدۍ کښ به حضرت عیسیٰ ع م دَهغه قتل له ظاهر شي - او امام مهدی به موجود شي دَمهدی موعود چه څه حلیه ئې ښودلي وه دا بالکل دَحضرت غلام احمد علیه السلام حلیه ده -

(۲۴) دَحضرت دانیال ع م دَ صحیفې په دولسم باب کښ لیکلي دي چه حضرت مسیح موعود به دَحضرت محمد رسول الله دَهجرت نه پوره دولس سوه نوی کښ به ظاهر شي - تردیارلس سوه پنځه دیرش پوری به دَهغه دور وي حضرت غلام احمد ته (۱۲۹۰ھ) کښ الهام شروع شه (۱۳۲۶ھ) کښ وفات شه معلومه نه ده چه دا نهٔ کاله نور څه مطلب لري - والله اعلم -



## الغرض

نو په آیاته - نس یا څه زیات حدیثونه - او داقدر اقوال دَ بزرګانو صودَ اعلیحضرت غلام احمد علیه السلام سید الاتقیا والاصفیا امیر المؤمنین و امام الآخرین چه په موجب دَحدیث لامهدی الا عیسیٰ هم مسیح موعود وه هم مهدی آخرزمان وه په تصدیق کښ درج کړه - او په داقدر ثبوتونو اکتفا کوم - که دَ کتاب دَ لوئید لو ویره نه وَی نو ما به ډیر نور دلائل هم لیکلي وو - اګرچه علاوه دَدی دَ لائلو نه ما یو بل کتاب آثار قیامت نومی په دی باب کښ دَ قرآن کریم او دَ احادیثونه په تصدیق دحضرت صاحب موصوف کښ لیکلي دی - هغه وقت چه دا حدیث موجود دی چه علماء امتي کانبیاء بني اسرائیل چه څما دَ امت علماء دَ حضرت موسیٰ دَ امت دَ رسولانو په مثل دي - پس علماء چه په مثل دَ بني اسرائیلو دَ انبیاوُ دي - نو حضرت غلام احمد خو هم دَدی امت یو لوئ عالم باعمله وه - پس که هغه په مثل دَحضرت عیسیٰ ع م شي چه دَ بني اسرائیلو یو نبي دی - نو څه ظلم وشه

اوس خما داعرض دی چه د حدیث د من لم یعرف
امام زمانه فقد مات میتة الجاهلیة - مضمون ته
وکوری - چه هغه کس چه امام د خپلی زمانی بیا مومی
او د هغه په زمانه کښ امام د وقت راشی - او هغه
کس د هغه د پیژندګلو کوشش و نه وکړ - او مړ شه نو
د جهالت مرګ ئی نصیب شه - یعنی ګمراه مړ شه -
پس د خدائ تعالیٰ د پاره ای عزیزانو - په دی باب
کښ د قرآن کریم او د حدیث شریف په موجب
فیصله وکړئ - او د خدائ تعالیٰ نه دعا د حق او د
باطل د تمیز د پاره وغواړئ - والسلام

---

خاکسار

قاضی محمد یوسف احمدی -+

قاضی خیل د هوتی مردان ضلع پښاور



## عقیده او دعوی د حضرت غلام احمد علیه السلام

مسلمان یم زه په فضل د مولا خپل — محمد رسول الله ګنړم پیشوا خپل
پیدا شوی په اسلام کښ یم له موره — هم په دا به له دنیا ځم ترکوره
حق کتاب د پاک الله ګنړم قرآن — امر و نهی م قبول دی په خپل ځان
محمد خیر الرسل خیر الانام دی — نبوت د شریعت په ده تمام دی
سرچشمه چه محمد دی د هر آب — زه له ده نه پاک الله کړم سیراب
ده چه وکړله په ما کښ تجلی — امتی وم او نبی شوم خو ظلی
اوس چه ما ته الهام شی یا ایما شی — دا په فیض د محمد رسول الله شی
ما موندلی محمد نه دا کمال دی — بی له ده نه د مولیٰ وصل محال دی
اقتدا کړم په قرآن او په حدیث — منکران ئی زه ګنړم هم خبیث
ملائک دوزخ جنت جن و شیطان — هغه څه چه په قرآن کښ دی بیان
هم حق دی پیشګوئی د پاک حضرت — منکران ئی مستحق دی د لعنت
خوارق ئی هم واړه دی برحق — هر منکر ئی لعنتی ګنړم مطلق
معجزات د انبیائ سابقین — چه قرآن کښ دی راغلی بالیقین
ما ایمان دی پر راوړی چه بنتیا دی — منکران ئی کاذبان دی اشقیا دی
یو قدم چه څوک جدا له محمد دی — دی خما په عقیده کښ بس مرتد دی

هر ساعت یم په دې فکر کښې غرقاب — چه اسلام شه د دې خلقو ډیر خراب
نه پوهېږي د دین نه د ایمان — بد عمل دي بدکاران دي فاسقان
امیران ئې دي مصروف په عشرت کښې — زاهدان ئې دي پراته په جهالت کښې
عامیان ئې دي په شرک گرفتاره — عالمان ئې بې عمله دي ناکاره
واعظان ئې هر چه وائي هغه نه کړي — سیدان ئې دې رشه وکوره چه څه کړي
ملایان ئې دي په دا کښې ډیر چالاک — چه اسلام د موږ مناؤ نه کړي پاک
غرض دا چه د اسلام شو لوی چال — دې حالت له مغربي اوسته دجال
په مشرق کښې له عربه هندوستان کښې — دیري واچولې ده په هر میدان کښې
او حملې ئې په اسلام وکړې بې سیره — د اسلام دې کمزورتیا کړه لا دلیره
په کوشش کښې شه مصروف دغه خبیث — چه قایم کړې د توحید په ځائې تثلیث
بل کوشش ئې وه دا دے چه عیسیٰ رب دے — مصلوب شو د دې څمونږ په سبب دے
کفاره شه د دې څمونږ د عصیان — او سی وندی دے ناست دے پورته په آسمان
او باقي پیغمبران هم ټکان وو — د آدم نه را پیدا گنهگاران وو
چه د دې سوه کاله تیر شو په دا حال — او اسلام شه له دجال پائمال
آریاکان هم را پیدا شوله هنوده — دوئي هم کم نه وو اسلام ته له یهوده
تسلط چه په دوئي هم وکړ رجیم — دوئي وې خدائي او ماده روح دے کل قدیم
خدائے خالق نه دې صانع دې د جهان — نه قیامت شته نه دوزخ شته نه جنان



تناسخ دې هر انسان له مقرر — کله اس کله جماد شي کله خر
دا نیوکیان شوله ډیر بغض له حسد — را شروع د پاک اسلام په بیخ ورد
د اسلام په قلا تول حمله آور شو — د اسلام په کمزورتیا هره ذره ور شو
دا په دا چه د اسلام هر یو فریق — خان مؤمن باله صادق بل زندیق
هر سړي ډوب شه د کفر په خولو کښې — دین ئې وویشو په دوه اویا تولو کښې
بد عمل شه هر فریق بد اعتقاده — بد چلن شه هر سړي د کښې فساده
د قرآن رسۍ کړه ترکه هر واړو — له صراط المستقیم شو په جدا رو
د اسلام شریعت دوئي نه شه مفقود — په رواج کښې شو اخته لکه یهود
په دے تیر شو دولس سوه پنځوس کاله — حکم وشه په آسمان له فې والجلاله
چه شروع دشي آثار د قیامت — او پیدا د شي یو کس خیر امت
را پیدا شوم زه موعود غلام احمد — په قادیان کښې خاص په فضل د احد
د عرب نه دې مشرق کښې هندوستان کښې — یعني خاص د مغلو په لوی کان کښې
چه روښانه دوباره دین د مولی کړم — او ایمان راکوز بیا زه له ثریا کړم
چه څلوېښت کاله د عمر م شو تمام — پاک الله څما له ما شه هم کلام
هغه وقت کښې چه پوره شو سیزده صد — را عطائې کړه لقب د مجدد
مشرف ئې کړم په وحی په الهام زه — هم ئې کړمه کل جهان له امام زه
پنځه کاله پس شه حکم د معبود — چه اسلام له وړه دے ته مهدي موعود

بیائی ماته کړ خطاب چه ته مسیح شوی | دَ عربو په زبان کښ به فصیح شوی

دا په دا چه لا مهدی الا عیسیٰ | فرمائلی ستا په باب دی مصطفیٰ

مخاطب ئے کړم په دا رنګ بار بار | چه ته ورکړه کاؤ عالم کښ اشتهار

چه عیسیٰ ابن مریم دَ خدای پسر | هرګز نه وه وا دِ وری دجال اعور

نه دی مړ وه په صلیب او نه مصلوب شه | مصلوب کله دَ مولیٰ په در محبوب شه

دی کشمیر ته راغی هلته کښ وفات شه | ورداخل بیا په زمره کښ دَ ممات شه

هغه څوک چه دی ژوندی په فلک ستائے | دی مائل په فسانو دَی غلط وائے

په انجیل او په قرآن کښ دی وفات | بخاری او مالک وائی دی ممات

دَ اسلام په حقانیت م وکړ جنګ | هر دجال آریه سِکه شه لما تنګ

ما ثابت کړ چه کامل کتاب قران دے | هر منکر دَ ده په کجه زوان دی

یو اسلام دی چه کامل په شریعت دَے | ختم شوی په اسلام کښ هر نعمت دے

محمد خیر الورٰی فخر الرسل دَی | دی افضل په هر صفت له جزو کل دے

او دَ جال چه مباحث شه له ما پړ شه | بیا خیری م ورته وکړلی نو مړ شه

وعده شوی ده له ما چه هیڅ نفس | نقصان نه شی رسولی یو بکس

په دا مزکه هیڅ بشر نه دی قادر | چه دی ور سوی ما ته څه ضرر

مقرر دی څما عمر اتیا کاله | پنځه کم یا څه دَ پاسه څما لاله

هغه وقت چه دا نزدی شی څما موت | په طبع مرض به زه شمه خود فوت



زه پنځیله دَ یولوی نسل آدم یم | خدای څما دی په نصرت کښ زه بیغم یم

زه به څم له دی دنیانه با مراد | ما عالم کښ دَ امان کینبود بنیاد

هغه څوک چه کړی څما توهین مدام
خدائی به ده له سزا ورکړی والسلام

# اعلان

## دَ پاره دَ اتمام دَ حجت په غیر احمدیانو

مونږ احمدیان ددی امر اعلان کوو چه - څمونږ دا عقیده ده چه حضرت عیسی علیه السلام دَ ناصری خوئ دَ بی بی مریم چه څیل یو سل شپږ ویشت ۱۲۶ کاله عمر دی دنیا کښ تیر کړ نو وفات شه لکه چه ټول پیغمبران څمونږ دَ پیشوا سیدنا محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مخکښ وفات شوی دی - مَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ محمد دَ خدائ تعالی رسول دی - او له ده نه هغه وړنبی کال رسولان وفات شوی دی -

هغه کسان چه دا اعتقاد لری چه حضرت عیسے علیه السلام له دی دنیانه ژوندی (حیات) دی خاکی جسم (جسد العنصری)

سره آسمان (سما) ته ختلی دی او بیا به هم په دغه کیفیت
سره د قیامت اول آخره زمانه کښ راکوزیږی (۱) که هغوئ
په قرآن کریم کښ یا صحیح حدیث د حضرت عیسے علیه السلام د پاره
دا (د حیات - د جسد العنصري - د سما) لفظونه وښیيل (۲)
یا په صحابه کبار د حضرت رسول کریم صلعم (یعنی حضرت ابوبکر
صدیق - حضرت عمرؓ فاروق - حضرت عثمانؓ ذوالنورین - حضرت
علیؓ مرتضی - یا د باقی عشره مبشره) په صحیح قول کښ چا
ثابت کړه - چه حضرت عیسٰی علیه السلام په دغه کیفیت سره
آسمان ته تللی دی - او بیا به هم په دغه شان راکوزیږي
(۳) یا د ائمهٔ اربعه (یعنی حضرت امام اعظمؒ - حضرت
امام مالکؒ - حضرت امام محمد شافعیؒ حضرت امام احمد بن حنبلؒ)
په صحیح قول کښ هم په دغه ترتیب او کیفیت سره ختل او کوزیدل
وښائي - (۴) یا دا چه خدایتعالی فاعل وي او د توفی
لفظ (د باب تفعل نه) په طور د فعل راغلی وي او یوازي روح
مفعول وي لکه چه اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيسٰٓى اِنِّىْ مُتَوَفِّيْكَ کښ
(یعنی خدایتعالی ووی چه ای عیسٰےؑ زه به تا له وفات درکړم)
کښ د توفی لفظ راغلی دی - که سواله موت (مرګ)



نه بله معنی د قرآن کریم نه د حدیث نه د عربي لغت نه
ثابته کړه (۵) یا دا چه یو سړی دعوی کړی وي - چه زه
مامور من الله یم - او ما ته وحی او الهام کیږي - او هغه
په حقیقت کښ دروغژن او مفتری وی - او دروښت
کاله پس له دی دعوی نه په دغه دعوی کښ ژوندی پاتی
د هلاکت د سزا نه پاتی شوی وي - لکه چه سید الصادقین
حضرت محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم - او سید نا
امام الآخرین حضرت غلام احمد علیه السلام دیرلویشتو
کالو په عمر کښ وه - او د دی امر دعوی ئی کړی وه - چه موږ
مامور من الله یو - او موږ ته وحی او الهام کیږي - او پس له
دغه دعوی نه دروېشت کاله نور په دغه دعوی کښ ژوندی
وه - او د لو تقول علینا بعض الاقاویل لاخذنا منه بالیمین ثم
لقطعنا منه الوتین (چه که محمد په ما د دی افترا او دروغ
ویلی وی - چه ما ته فلانکی وحی - یا الهام شوی دی او هغه
ورته په حقیقت کښ ما نه وی کړی نو ما به د ښي لاس نه
نیولی وه - او د هغه د روح شاه رګ به مې قطع کړی وه یعنی
هلاک کړی به مې وه) د سزا نه بچ پاتی شه - که څوک مفتری هم

بېج باتی شوی وی - او په صحیح او معتبر روایت سره دیوکس
نوم واخلی او پیش کړی - نو مونږ به هغه کسانوله یوسل
روپئې انعام ورکړو - دا تحریر ځمونږ دپاره دَ هغوئ په طو
دَ سند به وي - او که چرې دَ دی ښځو وارو خبرونه دَیو
ځواب هم نه شي کولی - او بیا هم حضرت عیسےٰ ؑ ته
ژوندی په آسمان وائي - او حضرت غلام احمد علیه
السلام ته په دعویٰ دَ مهدي ا دَ مسیح موعود کولو کښ
کاذب وائي او مفتري علی الله گنړي - نو هغه کسان د
خدای تعالیٰ دَ عذاب او دَ مواخذی نه وویرېږی -
هَاتُوا بُرهَانکُم اِن کُنتُم صٰدِقِینَ ه - که تاسو په خپلو
خبرو کښ رښتیني یئ - نو دَ هغو ثبوت راوړئ - لکه چه
مونږ غواړو - والسلام ✣

**نوټ** :- بعضی خلق دَنا پوهئ نه دَ نمرود - دَ فرعو
یا دَ بل داسې نوم واخلي - هغوته دِ واضح وِی - چه
وغیره دهریه کان وو - دَ خدائے تعالی دَ وجود هم قایل نه وو
او ځمونږ اعلان دَ ماموړ من الله دعوی کوونکي په باب کښ
دی - چه دَ وحی - او دَ الهام دعوی لري ✣

(المعلن محزون احمدي دَ پېښاور)